د خاموشـــۍ لــه شــوره ډېــرو ســر تنـدې اونيـوۀ
د بــې وســـۍ لــۀ زوره ډېـر پــه زنګانــۀ پرېواتــۀ

# شور شور خاموشي

## اعجاز خټک

# شعیب سنز پبلشرز اینډ بکسیلرز

جي ټي روډ منګوره، سوات




د کتاب نوم ................. شور شور خاموشی

لیکونکے ................. اعجاز ختك

ناشر ................. فضل ربی راهی

پروف ریډنګ ................. حنیف قیس

ډیزائننګ ................. لقمان حکیم

سرپاڼه ................. سرتاج استاد او ظفرعلی ظفر

دچاپ کال ................. ستمبر۲۰۱۲ء

پریس ................. حاجي حنیف اینډ سنز پرنټرز لاهور

بیه ................. ۲۰۰/- روپۍ

د رابطې لپاره .................

د موندلو درکونه :

- داماراتوپښتوادبي ټولنه مرکز دبۍ
- یونیورسټی بك ایجنسی پېښور
- شعیب سنز مینګوره ، سوات
- مکتبه اشرفیه، مېن بازار لاچۍ (کوهاټ)
- پشتواکېډیمي کتاب پلورنځے پېښور یونیورسټي پېښور
- پښتو ادبی ټولنه لاچۍ – کوهاټ خیبر پښتنتونخواه

**شعیب سنز پبلشرزجي ټي روډ منګوره، سوات**

**Website: www.shoaibsons.ipfox.com**
**Email: shoaibsons@yahoo.com**
**Ph: 0946-729448, 722517**

# ټرون

د خپل ګران و محترم استاد

سعد الله خان حېران په نوم

چې زۀ يې د شعرو ادب په الف ،ب باندې پوهه کړم

خاورې اعجازخټك

# سریزه

ښاغلے تاج انور د لاچۍ کواټ ، ادبی مجلسونو کښې داعجاز خټک په نوم پېژندلے شی، پلار نوم یې صوبیدار کُندل خان (مرحوم ) دے، دپېدایښت نېټه یې یولسم دسمبر نولس سوه دوه پنځوسم **( ۱۱ دسمبر ۱۹۵۲ )** او دسکول په کاغذونو کښې د مئ شپږمه نېټه کال نولس سوه څلور پنځوسم **(۶ مئ ۱۹۵۴)** لیکلې شوې ده. یعنې دا زمان د "سرېتوب عمر ته رسېدلے دے نو ځکه د"ښۀ سرېتوب " څرګندونه کوی او دا دے خپله ړومبی شعری مجموعه په اولس پېرزوکوی

زمـا شــاعري ده داولــس دســوکالۍ لــۀ پــاره
زۀ خــو لیکــل کــوم دژونــد دخوشــحالۍ لــۀ پــاره
زۀ خپــل غــزل تــه چرتــه ډمــه ګــډولے نــۀ شــم
نــۀ شــم کــولائې شــاعری دخرمســتۍ لــۀ پــاره

دا شعرونه داعجاز خټک د"احساس " نومې نظم آخری کړۍ ده کوم چې ما په اول ځل په خپل کلی طورو کې آورېدلی وو. په کال ۱۹۷۸ .ء کښې.دپیاوړی مورخ او شاعر تاج ملوک خان دلسوز (مرحوم) په یاد کښې ادبی دستوره وه . د لاچۍ نه دوه ځلمی شاعران سعادت سحر او اعجاز خټک هم د اولسی ادبی ټولنې مردان په بلنه راغلی وو په دې موقع ددې دواړو ښاغلیو د کلام تود هر کلے شوے وۀ دغه کۀ هر څو د ښاغلی اعجاز خټک د شاعری ابتدائي دور وۀ خو د دۀ "احساس " د پښتو میئنو له دا احساس ضرور ورکړو چې که د ملی ژوند د بیداری شاعر اجمل خټک هر څو که د وختونو دسیاست سیلۍ په مخه کړی دی او ګاونډی هیواد کښې ئې دجلاوطنۍ په ګاللو مجبور کړے دے ولې دهغۀ د احساس بڅرو "رشه" سالمه ده " دغیرت چغه" اوس هم پورته کیدائې اؤ آورېدلے شی ځکه چې د احساس غوږونه کاڼۀ نۀ دی او چې د ملت زلمی ویښ او بیدار وی نو دژوند په کالۀ کښې به دجمال او جلال رنګونه مدام خوارۀ وی او دقام ځلمي شاعران د خپل کلام په وسیله د بیداری جرسونه دېمار غږوی.

دنــــړۍ لــــه واقعــــاتو ســــبق واخلــــئ
دا تــر څــو بــه تاســو خپلــو کښــې جنګېــږئ
"باچاخــــان" درتــــه وئیلــــی داصــــفادي
کــۀ ویښ نــۀ شــوئ پښــتنو! ګــوره ورکېــږئ

زما په نیزد چې د لاچۍ اوسېدونکی زلمی وی، لوستې وی او په

شعرو ادب میئن وی نو هغه به آرومرٌو د محترم سعدالله خان حېران دفکر ونظر په پلوشو روښانه وی او دهغهٔ د " ګلستان " ګل یا وړمه به وی ، دغلته ښاغلي عمل خان سیاح، اکمل اسد آبادی او شاه ولی خان غوندې ننګیالو هم خپلې وینې او جذبې کرلې دي او دملی فکر ځېلی یې خورې کړې دي او د پښتونخواه په اولسی او ادبی ډګرونو کښې یې " لاچی " لهٔ پخواه نه لاچی لونګ کړې ده.

پــــه دې خــــاوره زېږېـــــدلی نومــــوړی عالمـــــان دي
هـــــم پیداپکښـــــي بــــــې شــــــمیره شــــــاعران دي
مدرســــه ده دعلمونــــــو، دا زمـــــونږ کلــــــے لاچــــی ده

ښاغلی اعجاز خټک د دغه چاپېرچل او دغه سیال کلی "لاچئ " پیداوار دے هغه دلاچی ګلستان پښتو دسیوری لاندی دشعر او هنر سفرپه کال ۱۹۷۰ کښې شروع کړو. کال ۱۹۷۱ کښې چې سیاسی زول طوفان راپورته شو نو لکه دنورو ادبی جرګو د لاچی "ګلستان" هم اوځپلے شو. په کال ۱۹۷۲ ء کښې دغلته یې" <u>پښتو ادبی ټولنه لاچی</u> " جوړه کړه . ښاغلے اعجاز خټک دجنرل سیکټر په حیث خپله سکنۍ ځوانی ټولنې ته وراُوبخښله او نهٔ کاله یې په دغه چوکی د پښتو ژبې او دادب ناوي ته لوګے کړه . دې مهال کښې د روزګار غمونو دخپل هېواد نه متحده عرب امارات ته په مخه کړلو. د خپلې کورنۍ دمعاشی مسلې هوارولو مبارزه یې شروع کړه د تن وینه ئې وسوزوله، خوله یې اُوبهیوله او پیسې ټکې ئې اوګټلې نو بیا هم دزړهٔ تاؤنو په آرام پرې نهٔ ښودلو او د پښتو دغم نه یې بې غمه نهٔ کړے شو. د یو څو ملګرو په ملا تړیې <u>" داماراتو پښتو ادبي ټولنه- مرکز دوبۍ</u> ” بنیاد کېښودو او د عربو رېګزارونو کښې یې د پښتو د بڼ وړمې خورې کړې او دغسې ئې د خپل ژوند غوښتنو سره سره د ادب عصري غوښتنې هم پوره کولې “د پښتو وړمې ”- “خوشحال او رحمان”- “د سلیم خټک مرحوم کلام مړاوي ګلونه اؤ د سعدالله خان حېران ” “پټې سلګۍ” د ښاغلي اعجاز خټک د شعري او هنري سفر زړهٔ پورې مطبوعاتي سلسلې دي . د اماراتو پښتو ادبي ټولنې مرکز دبۍ د سیوري لاندې چې وخت په وخت کومې لویې ادبي دستورې او مشاعرې شوېدي او ددې پـه اثـر چـې د پښـتو ژبـې او ادب تـه څـومره ښـېګړه رسـېدلي ده او اماراتوکښې پښتنوشاه زلمو کښې ادبي ذوق او سماجي غزونې کړې دي نو د فخر او عزت پټکے هم که ښاغلي تاج انور اعجاز ته په سر کړے شي نو بې ځایه به نهٔ وي.

**خوشـــــــالیږم چـــــــــې روګــــــــورم**
**د ادب پـــــــــه ګلســـــــــتان کښـــــــې**
**د عربـــــــــو رېګســـــــــتان کښـــــــې**
**دا زمـــــــــــا د لاس کرلـــــــــــې**
د پښـــــــــتو د بــــــــاغ ګلونـــــــــه

ماڅوکاله آګاهو د ښاغلي اعجازخټك په لاس ليکلي د کلام مسوده لوستي وه نو يو دوه کرښي تبصره مې پرې په خپله خوښه داسي ليك کړے وو چې د ښاغلي اعجاز خټک طبيعت کۀ غزل وئيلو ته پسخېږي نو مونږ دې ته يو فطري او غېرشعوري عمل وئيلے شو. دا غزلي د زلمي شاعر د هنري صلاحيتونو او د ځوانی د مستو مستو غزوني کوي ځکه نو اعجاز پکښې دومره نۀ شي ليدلے او منکر پرې اعتراض کولے شي . خو اوس چې د سپنکی ( نوے نوم يې شورشورخاموشي ده )يو ه بې ترتيبه مسوده د لوستو دپاره زما په وړاندې پرته ده او په کرښه کرښه کښې لۀ خېره د کمپوزنګ بلها غلطی د لوستونکی نظر کيري بيرې کوي – بيا هم په دې د يو نظر تېرولو نه پس دا احساس رابخښي چې ښاغلے اعجاز خټك په ځائے ولاړ نۀ دے. پرله پسې پرمختګ کوي . دغزل په حقله يي رويه او نظريه کښې زړۀ پورې بدلون محسوسېږ ي .غزل څۀ ته وائي د اعجاز خټك يو نظم دے، ديکښې شاعر دعوۀ کړي ده چې غزل د چا ښکلا پورې محدود نۀ دے، دا دوخت تقاضو آئينه دار دے او دخوشحالی د سباؤن زېرے دے خو پرتۀ له دې دعوې د ښاغلي اعجازخټك دادبي پېژندګلو ، د دۀ په بيلو بيلو موضوعاتو وئيل شوي نظمونه په غوره ډول کولے شي ،دغو نظمونو د ښاغلي اعجاز خټك شاعري شته منه کړې ده –زما په خيال د نظم ښه کښې د شاعر تخليقي صلاحيتونه څرګند ليدلے شي او د شاعر انه تخيل رنګارنګي پکښې هم شته – هر نظم ئي د زړه د وارداتو ، داخلي کيفياتو او خارجي محرکاتو ترجماني کولے شي -.

**د ښائيست او د ښکلا په کلو ګرځم**
**پکښې مينه، وفاګاني لټومه**
**رنګينۍ چې د نظر کچکول کښې راوړم**
**تصويرونه ترې د ښکلي جوړومه**

م ،ر، شفق
اسلام اباد
**۳۱ جنوری ۲۰۱۲ء**

# د اعجاز اعزاز

هرکله چې خدائے بخښلي ايوب صابر په سرپرستۍ کښې د کوهاټ دښار نه پنځويشت کلوميټره لرې په فاصلې باندې د سهېل (سوېل) آړخ په جرنيلي سړك باندې ښاد اؤ آباد کلی لاچئ کښې د ګلستان پښتوادب لاچۍ په نوم يو نوے ادبي تنظيم بنسټ کيښودو نو ډېر زر د دې ادبي ګلستان دشعروادب د ګلونوپه خوشبويانو ادبی فضاګانې معطرې شوې په خصوصې توګه د سعدالله خان نوم په ادبی دنياکښې لکه د نمر اوځلېدۀ. د عيسوي کال نولس سوه شپېتم نه تراوياېم پورې پوره لس کاله د دې تنظيم ډېر په اتفاق سره دپښتوژبې او ادب خدمت ډېر په ښۀ انداز کښې اوکړو.محترم سعدالله خان حېران نۀ صرف د دې انجمن د سيوري لاندې د نوي ګُول د شاعرانورلاربښودنه کوله بلکه په ګورنمنټ هائی اسکول لاچۍ کښې د استاد په حيث خپله وظيفه يې هم په ښۀ توګه ترسره کوله. حېران صېب د لاچۍ اؤ دټولې خټك نامې مشهورروحاني مشرمآذون صېب دويم دلاچۍ مولانا عبدالمنان عبېد مرحوم فرزند دے اؤ د پښتو سره سره د اردو، فارسۍ اؤ عربی درېوو ژبو عالم اؤ ماهر دے نو د داسې نابغه استاد د سيوري لاندې د سبق زده کړه د الله تعالی د لوې فضل څرګند علامت دے . راقم الحروف سعادت سحر، تاج انور اعجاز، انور الفت، انور حسېن مسافر، ميجرالطاف اؤ سعيدرهبر اؤ داسې نور لکه امجد ساقی جان د حېران صېب د مدرسې طالبعلمان دي اؤ دا ټول نن هم په دې وياړ کوي چې زمونږ سرپرستي حېران صېب کړې ده .

ښاغلي تاج انور اعجازسره زماپېژندګلي زما د عمر سره سمه ښکاري هغه په دې چې يو خود هغوي اؤ زمونږ کور يو بل سره ډېر نزدې اؤ بيا په يو اسکول کښې مونږ سبق وئيلي دے بس دومره به وه چې اعجاز صېب به مانه يو جماعت وروستو وۀ.

اعجازصېب دعيسوی کال نولس سوه څلورپنځوسم د مۍ د مياشتې په شپږمې نېټې زېږېدلے اؤ دبابا جي نوم ئي صوبېدار کندل خان دے. د دوی باباجی دپيرطريقت نوم يو پيرتاج علی شاه مريدوۀ چې دکشمير نه به ئي تشريف راوړلو. په کوموشپوورځوکښې چې اعجازصېب زېږېدلې وو نو په هغه دوران کښې د دوی د باباجی پير صېب هم لاچۍ ته تشريف راوړے وۀ چې کله يي اعجازصېب ورته اُښودلو نو هغوی ورله نوم تاج انورخوښ کړو.

ماته هغه شپې ورځې هم نن يادېږي چې اعجازصېب به په تبليغي جماعت کښې منډې ترړې وهلې ، دټول محلت ماشومان به ئي راجمع کړل اؤ شبې جمعې ته به يې بوتل اؤ بيا ماته هغه وخت هم يادېږي چې د هغه د

وړوکوالي ملګری لیاقت علی راز چې زما هم جماعتي وهٔ، په مرسته یوه ادبي ټولنه جوړه کړه چې نوم يې ورله پښتودرنه ادبي ټولنه لاچې کېښودهٔ خو دا د دوی د وړکوالي ادبي هلې ځلې وې. بیا داسې وخت راغے چې لیاقت علی خان راز دپاکستان په نېوی کښې نوکر شو اؤ د ټرېنګ نه پس يې بنګال ته اولېږلو چې هغه وخت د کال ۱۹۷۱ء جنګ ښهٔ په درزسره شروع وهٔ، بنګله دېش جوړ شو خولیاقت علي خان راز هلته شهید شو اؤ بیر ته رانغے. هم په دغوشپوورځوکښې ګلستان پښتوادب لاچې په سیاسي الغلاؤ تلغاؤ کښې داسې اونختو چې خپل ادبي سفر يې نیمه خوا پاتې شو. نو اعجازصېب د یونوي تنظیم جوړولو تابیا اوکړه چې دراقم الحروف سره سره سلیم خټك مرحوم، عزیـزالله عزیـز مرحـوم، انورالُفـت، نثارګـل نثـار، غیورناشـاد، سـعیدرهبر، میجرالطـاف سـرفرازخټك (ریټـائرډ) ، اقبـال فنـا، انورحسـین مسـافر، بشـیر احمدبشیر، فیض الله جان فیض ، اقبال عارف ، اسلام بادشاه اسلام اؤ پروفیسر نعیم رضـوان خـانزاده پـه مرسته د سعدالله خـان حېـران پـه سرپرستۍ کښې پښـتوادبي ټولنـه لاچـې جـوړه کـړه چـې د اعجازصـېب د نـهٔ سـتړی کېـدونکی هلوځلو اؤ د هغوی د ویال طبعیت په برکت دغه تنظیم ډېر زر د پښتونخواه د نورو ادبی تنظیمونوسره اوړه په اوړه يې اودرولو. د دې ټولنې دسیوري لاندې به نهٔ صرف اُووهٔ ورځنی تنقیدي غونډې کېدلې بلکې په علاقائي اؤ په ملکی کچ به يې مشاعرې کولې،د پښتوټپه ده.

ځـــــوك پـــــه رضـــــا لـــــهٔ ملكـــــه نـــــهٔ ځـــــي
يـــــا ډېرغريـــــب شـــــي يـــــا د يـــــار دلاســـــه ځينـــــه

نوبیا داسې ورځ هم راغله چې اعجازصېب د معاش په سلسلې کښې دوبۍ (متحده عرب امارات) تـه لاړو، هغه ورځ زمونږ ټولنې ملګرو دپاره د یو لوې غم نه کمه نهٔ وه خو اعجازصېب د یورونې مستقبل په تکل کښې ملګرو هغه په ډېرو دعاګانوسره رخصت کړوګنې اعجازصېب په پاکستان کښې هم بېروزګاره نهٔ وهٔ، دکوهاټ په اکاؤنټ آفس کښې د مرحوم رومان ساغر سره جوت په کرسۍ بـه ناست وهٔاؤ دواړوشعروشاعرۍ سره سره د ایم اے پښتو امتحان په پرائیویټ توګه پاس کړے وهٔ.

دعیسوی کال نولس سوه یوکم آتیایم د جنورۍ میاشتې یولسمې نېټې پورې اعجازصېب د ټولنې عمومی سکتر وهٔ. هلته چې متحده عرب اماراتو ته لاړو نـو یوکـال پـس یعنـې کـال ۱۹۸۰ کښـې یـې داماراتوپښـتوادبي ټـولنې مرکزدبۍ په نوم یوه ټولنه سازه کړه چې د الیاس ټلوال ورسره پوره په پوره منډه اووهلـه. ترننـه پورې اعجازصـېب د دې ټـولنې عمومي سیکټر دے. دوی دلته ډېرې درنې اؤ بین المللی مشاعرې کړې چې ادبی دنیا ئې نن هم یادوي . دوی د خپلوملګرو یو تعارفی کتـاب د وږمـې پـه نـوم اؤ بـل یـې د خوشـحال و رحمن بابا په نوم چاپ کړی.دغه کتاب دشپاړسم جماعت د پښتوطالب علمانو دپاره پښتواکیډیمی ډېره ګټور اؤغوره ګرزولے چې ډېرې علمی او ګټورې

مقالې پکښې شاملې دی کومې چې ددوی ملګرو په خپله لیکلی.

یو اهم ادبي ، علمي اؤ سماجي کار چې دوئ کړے هغه دا چې دپاکستان نه یې. قلندر مومند، پرېشان خټك،ایوب صابر،سعدالله خان حېران، پروېش شاهین، عبدالکریم بریالے، مطیع الله قریشی، مجبورسوراني، غازي سیال ، سلیم بنګش اؤ اسیرمنګل غونډې لوې لوې شاعران اؤ ادیبان رابللي .

کۀ دغومشاعرو ویډیو ریکارډنګ اوګورئ نو دآورېدونکو شمېره پکښې دحده نه زیاته ښکاري خو د اعجازصېب نظامت به دا مشاعرې نورې هم یو په دوه ښائسته کولې.

اعجاز صېب دپښتو ژبې اؤ ادب د پرمخ تګ لۀ پاره هر وخت اؤ هر ځائے کښې خپل صلاحیتونه پکار راوستلي اؤ پیسه یې شندلې خو قصه یې کټلې .

- د هغوی د هلوځلو په برکت حسېن احمد صادق ، مهرونېش صدیقی، وزیر بادشاه جانان، امت بنګش اؤ بختیار شاکر غونډې ادبی ملګرو په دوحه قطرکښې پاك پښتوادبي ټولنه جوړه کړه.هم دې سره سره ئې دغه ملګري هم مشاعرو ته رابللي . دې نه علاوه ئې فیروزآفریدي هم په خصوصي توګه مشاعرو ته رابللې .
- په بحرین کښې یې هم د ټولنې جوړولو دپاره حامدقریشی سره آړیکې نیولې وې خودمقامي قوانینو له وجې هغوي ټولنه جوړه نۀ کړے شوه .
- په ویسه اټك کښې پښتوادبي جرګه دمشتاق احمدمشتاق په سرپرستۍ کښې اعجاز صېب جوړه کړې.
- ورسره ورسره په کراچۍ کښې د اتفاق پښتو ادبي ټولنه هم صابر احمدصابر استاد په مرسته اؤ دهغوی د نورو ملګرو په برکت جوړه شوې ده .

زما دمعلوماتو ترمخه کۀ ریډیو اؤ ټي وي دلاچې نه څوك بللي نو د سعدالله خان حېران اؤ زما دباباجی شاه ولی خان نه پس یې اعجازصېب بللے ځکه چې دا دومره مقبول شوے وۀ چې دوی به مشاعرو ته رابللو.

په متحده عرب امارات کښې د راس الخیمې ریډیو نه چې خپرونې پېل کېدې نو داعجازصېب پکښې پوره پوره لاس وۀاؤ هم هلته دوی دپښتو په اووه ورځني خپرونوکښې یوکال پورې کار کړے دے اؤ دا خپرونې به ټول عربستان کښې اؤ په افغانستان اؤ کوئټه بلوچستان کښې آورېدے شوې اؤ پښتانوبه دومره خوښولې چې د جمعې په ورځ به سحریولس بجې اؤ دشپې یولس بجې به ټول پښتانۀ ورته غوږ غوږ ناست وو.

اعجازصېب یو ډېرخوږ انسان دے، هرچاسره ډېره په مینه ګړه بړه کوي. اؤ بیا د خپلوادبي ملګرو خو دومره قدر کوي چې کله سلیم خټك په حق اورسېدۀ نو دهغوي د کلام مجموعه د مړاوي ګلونه په نوم چاپ کړه اؤ بیا ئې د خپل استاد سعدالله خان حېران کلام پټې سلګۍ چاپ کړې اؤ دا دے نن دخپل کلام مجموعه چاپ کوي چې نوم یې ورله شورشور خاموشي غوره کړې ده.

اعجازصېب د کال نولس سوه يوکم آتيايم نه په عربستان کښې دژوند ورځې شپې صباکوي ، دزړهٔ اؤ دشوګر مريض هم دے، په داسې عمر دسړي زړهٔ غواړي چې آرام اوکړي خو هغه دچاخبره چې شوخ د خوارو زړونه دي چې چوي نه ، د اعجازصېب حوصله لا ځوانه ده ، د هغوي مزل لا روان دے اؤ داسې يو نابغه روزګار شخصيت دے چې داسې خلق ډېر کم پيدا کېږي . د داسې خلقو په باب له خادم بابا ډېر ښهٔ وئيلے.

چې ژوندے ووم ، تاسو ويشتے ووم په کانو
اوس مې ځله ښکلوئ د قبر کانی

نو بايد چې مونږ د داسې خلقو قدر په ژوند کښې اوکړوګنې دآسمان نمر په ګوته نهٔ پټېږي .

په دې موقع د اعجازصېب د شعر و شاعرئ په بشپړه توګه تبصره کول يقينا چې ګران کار دے خو زهٔ ډېر په لنډو ټکوکښې د هغوي د کلام ذکرخپل فرض ګڼم . دوئ غزل ، نظم اؤ هائيکوليکلي .

په کال نولس سوه يوکم اويايم (۱۹۶۹) د ميئ د مياشتې په شلمې نېټې زمونږ د نيکهٔ ميرولي کاکا په سرائې کښې يو ه طرحي مشاعره کېدله چې صدارت ئې افضل رضا کولو. ما اؤ اعجاز خټك پکښې په وړمبي ځل ګډون کولو، د اعجازصېب کلام مطلع اؤ مقطع وړاندې کوم.

ستا د راتلو وعده وفا نهٔ شوله
په ما دهجرشپه صبا نهٔ شوله
اعجازمجبور وهٔ چې پښتوکښې ګېر وهٔ
خو هغه پېغله پښتانه نهٔ شوله

په يو بل شعرکښې د ورورولئ پېغام داسې آوروي.

دورورولئ مشال په لاس ګرځوم
دغه رڼا به لر اؤ بر ته يوسم

دغزل روح تغزل ته وئيلے کېږي، لږ يې دا انداز اوګورئ.

تا چې د ښو په غشو اوويشتم
مړ وومه جانانه! راژوندے دې کړم

رقيبانو ته په ښکلي اندازکښې داسې پتون ټپوي ،

رقيبان دې اوس دسر خېرونه غواړي
چې اعجاز ورته وهلے نن پتون دے

زۀ دپښتو ژبې سترنقاد اؤ اديب م ، ر، شفق دې رايې سره اتفاق لرم چې د اعجاز نظم په غزل باندې دروند ښکاري لکه د احساس نومې نظم د هغوی د ژور احساس په ښه توګه ترجماني کوي اؤ داسې وائي چې.

ماتــــه د وخـــت ختلـــي نمــر تـــه تيتېـــدل نـــۀ راځـــي
ماتـــه د عشـــق اؤ د مســـتۍ نـــه ډك غـــزل نـــۀ راځـــي
زۀ داولــــس پــــه غــــم لړلـــــي مرثيــــي ليکمـــــه
دې نـــه سـېوا راتـــه پـــه بـل څـــۀ کښـــې ليکـل نـۀ راځـــي

دعشق عنوان لاندې نظم يې يو شاهکار نظم دے چې ډېر په ښکلي اندازکښې د عشق مفهوم داسې بيان کړے.

عشـــــق د کلهــــم انســــانيت د ورورولــــــۍ فلســـــفه
عشـــــق د انســــان د محبـــت اؤ ســــوکالۍ فلســـــفه
عشـــــق د زردار اؤ د نــــادار د يـــــو ولـــــۍ فلســـــفه
عشـــق د خوشـــحال د ننـــګ و پـــت پښـــتونولۍ فلســـفه

عشـق د خوشـحال د تـورې شـرنګ اؤ دغيـرت قصــه ده
نــــۀ د لـــــيلا اؤ د مجنــــون د محبــــت قصــــه ده

د اعجاز صېب نور نظمونه لکه.پښتنه ميرمن، هغه څوك وه، ارمان، جنت، منزل، زما خوشحال اؤ شپونکي سندره.دلوستو جوګه دي چې دطوالت لۀ خاطره دا هر څۀ په لوستونکو پرېږدم . په آخرکښې به دومره اووايم ،

چــــې د اعجازغونــــدې لــــۀ ســـره تېـــر شــــي
هغــــــــه خبــــــــرې زړورې کــــــــوي

په درناوي
سعادت سحر
صدر پښتو ادبي ټولنه لاچۍ

# د پښتولېونے

هغه بله ورځ راته تاج انوراعجازخټك ټليفون اوکړو چې بشيرصېب زۀ خپل کتاب چاپ کووم ، ماورته وئيل ، مبارك شه، ډېر زيات خوشحاله شوم خو ډېرزيات حيران په دې خبره شوم چې وئيل ئي راته دکتاب مسوده درلېږم چې ليکل پرې اوکړې، داخبره زما دپاره دحېرانتيا او پرېشانئ وجه ځکه وه چې زۀ په دې خبره لا خبر نۀ يم چې د چا په کتاب ليکل او خپل تآثرات ليکل دکله نه او څنګه شروع شوی دی خو په دې خبره ښۀ پوهه يم چې کله هم يو مصنف خپل کتاب چاشاعرله ليك دپاره ورکوی نوکوشش کوی چې لوئې نه لوئې شاعر، اديب ، ليکوال انتخاب اوکړی او کۀ لوې نۀ وی نو بيا خوچې کم نه کم دمصنف نه دشعروادب په ميدان کښې سينيئر وی ، پياوړے وی او پېژندونکے وی. او بله خبره دا د حېرانتياچې زۀ پرې لا پوهه نۀ يم چې ښاغلي ليکوال اعجازصېب خپل کتاب دپاره (شورشورخاموشی) ولې او په څه مقصدماته د ليك دپاره راکړوځکه زما او د اعجازصېب حيثيت د شعرو ادب په حواله داسې دی لکه داستاد او شاګرد، اعجازصېب په دې ميدان کښې زما د استاد حيثيت لري او ماته لا ځان د ادب په شاګردانوکښې هم نۀ ښکاري خو دا د اعجاز صېب د مينې او اخلاص او سړيتوب يوه لويه نمونه ده چې زما غوندې د ادب يې طالبعلم ته يې خپل کتاب د ليك دپاره راکړو او اوس زۀ دښاغلي ليکوال د حکم په تعميل کښې د دوی په کتاب باندې خپلې ماتې ګوډې خبرې اوليکم.شورشور خاموشی او بيا دا شعرونه.

ځنـــې ســــرونه مـــې ليـــدۀ پـــه نمرخاتـــۀ پرېواتـــۀ
ځنـــې ســــرونه آخرغـــوځ شـــو، ورتـــه نـــۀ پرېواتـــۀ
غـــوره تښـــا چرتـــه پـــه لـــرې وطنونـــو اوشـــی
تنـــدرراتلو، زمـــونږ پـــه کـــور، پـــه هرکالـــۀ پرېواتـــۀ

د دې شعرونو شاعرتاج انور اعجازخټك زۀ دتېرو دېرشو کالو راسې پېژنم. دکوهاټ ضلعې لاچئ کلی يو ځوان زلمے چې نن هم لکه د تېر وخت په شان به په عمر ډېر خو په زړۀ زلمے دپښتوادب د ميدان هغه زيرك او سترګه ور شهسوار دے چې د۱۹۸۰ نه واخله ترننه يې دعربوپه دې سره شګلنه او سوراړه زمکه يې د يو ځوملګرو سره د اماراتوپښتوادبی ټولنې شمع په خپلو هلوځلو او منډو تررړو په هرحال او هر ساعت داسې روښانه ساتلې ده چې ديوطوفان او بادوباران تتېدو لـه نـۀ ده ورکړی او نن هم سره د خپلوملګرو لګيادے د پښتو ژبې او پښتو ادب سرچينه کولوکښې بوخت دے او ولې به يې

نهٔ کوی چې دې ښاغلی د میدان ګټلو هنردپښتو ادب د یولوئې پوهه اوزیرك استاد ښاغلي سعدالله خان حېران نه زده کړے دے ځکه خو چې اعجازصېب څهٔ هم لیکلی دی، زما په خیال یې په تول پوره او وزن پوره په پوره دي، کهٔ څهٔ کمے پکښې وی هم نوماته پکښې په نظرنهٔ دی راغلي.

اعجازصېب د ژوند په هر اړخ لیکل کړی دي او دا هرڅهٔ یې په غزل ، نظم او هائیکوکښې ځائے کړی دي او چې هرڅهٔ یې لیکلی دي نو ډېره یې خوږه او پسته ژبه کښې یې لیکلي دی چې یو عام لوستونکے یې په اسانه لوستلے هم شی او پرې پوهېدے هم شی.

اعجازصېب کهٔ یو خوا دځان او جانان خبره کوی نو دخپل کورکلی د کوڅو د فکر نه هم ناخبره نهٔ دے پاتې شوے او ددې سره یې د اولس غم هم په خپل زړهٔ کښې لکه د روح ځائے کړے دے. دخپل قام اولس او د وطن غم یې تل ترتله په خپل چاپېرچل دړدونه خوشحالئ هر څهٔ یې په خپل کلام کښې ځائے کړی دی خو سره د دې یې د نړئ د مظلومانو غم هم ژړلے دے، دا تول دیو ښهٔ او پوهه شاعرنخښې دی چې ټولې دښاغلی لیکوال په شاعرئ کښې موجودې دي. ښاغلے لیکوال چې کله خپل جانان ستائي نو وائي.

کــــهٔ زمــــا جانـــــان دې اولیـــــدو پـــــه ســـــترګو
درنــــه هیـــــر بـــــه دجنــــت حــــورې غلمــــان شــــی
خلــــق وائـــــی چــــې یــــې زړهٔ راځنــــې یــــوړو
خوتــــازه پــــرې د اعجازخټــــك ایمــــان شــــی

او بل ځائے وائی،

تــــاچې دبڼــــو پــــه غشــــو اوویشــــم
مړوومــــه جانانــــه! راژونــــدے دې کــــړم
ســــتا اعجازخټــــك بــــه ولــــې نــــهٔ ســــتائي
ســــتایو خــــوږ نظــــردے چــــې زلمــــے دې کــــړم

او کله کله د جام ، ساقی او میخانې نه هم خوند آخلی نو داسې وائی،

هغــه چــې جــام دپاســه جــام ســره هــم خلــهٔ ورکــوی
داســې ســاقی تــه بــه څــوك څرنګــې زړهٔ نــهٔ ورکــوی

او یا دا چې،

ســـــــــــتا دمستوخماروســـــــــــترګوآثر دے
میخــــــانې کښــــــې د جامونوکړنګهــــــار شــــــو

او بل ځائے کښې وائی چې،

چــــې څښــــوی شــــراب د مینــــې پــــه نظــــر د مستوســــترګو
پــــه دا خــــوی مــــې ځکــــه خــــوښ دے دا دلبــــر د مســــتو ســــترګو

او چې د خپل کلی د کوڅو خبره شي نو څهٔ داسې وائي،

خزانـــه د تـــاريخونو ،دا زمـــونږ كلـــے لاچـــی ده
آيئنـــه ده د وختونـــو ، دا زمـــونږ كلـــے لاچـــی ده

دځان په حقله ښاغلے وائي،
ماتـــه د وخـــت ختلـــي نمـــر تـــه تيتېـــدل نـــۀ راځـــي
ماتـــه دعشـــق او د مســـتی نـــه ډك غـــزل نـــۀ راځـــي
زۀ د اولـــس پـــه غـــم لړلـــې مرثيـــې ليكمـــه
دې نـــه سـپوا راتــه پـه بـل څـۀ كښـې ليكـل نـه راځـی

شاعر به څنګه بل څۀ اوليكی چې په كوركلی محلت كښې دبارودو ډېري پراتـۀ وی، زلمی پېغلې ، ماشومان اؤ بوډاګـان بې ګناه قتلېږی، بيا بـه شاعرنوره شاعری څۀ اوكړی، د شاعرخو بـه بيا هم داسې شاعري كوی لكه اعجازصيب چې وائي،
ملګـــرو! مانـــه دســـرور ډكـــې نغمـــې مـــۀ غـــواړئ
مانـــه د وخـــت د نمرودانـــو قصـــيدې مـــۀ غـــواړئ
زۀ د حـــــالاتو كـــــربلا بانـــــدې مـــــاتم كوومـــــه
مانـــه مـــاتم كښـــې د خنـــدا ډكـــې قصـــې مـــه غـــواړئ

د وطن په حقله شاعر خپل احساسات څۀ په دې ډول بيا نوی،
هغـــه آزادی چـــې مـــونږ پـــه ســـرو وينـــو ګټلـــې ده
دا دزنـــده بـــاد پـــه نعـــرو مـــونږ ه تـــل پـــاللې ده

هغـــه آزادی چـــې د شـــپونكی د خلـــې ســـندره وه
هغـــه دخيبرپـــه دنګـــو غروكښـــې غلـــي غلـــي ده

اؤ بل ځائے وائي،
چــــــې پــــــرون وۀ هغـــــــه نـــــــن دے
هغـــــــه ملـــــــك ، هغـــــــه وطـــــــن دے
د اســـــلام پـــــه نـــــوم جـــــوړ شـــــوے
پكښـــــــــــې زور دے د خـــــــــــدايانو
زماهېربركـــــــــت شـــــــــاه شـــــــــی
دا چـــــــــې اُوخـــــــــوړو پېرګـــــــــانو

د جانـان د صفت اؤ وفـا سره سره ښاغلے ليكـوال د دوران پـه غم كښې هم بوخت دے او څۀ په داسې ډول ګويا دے،
ملګـــــرو! زۀ پـــــه داســـــې ښاركښـــــې اوســـــم
لكـــــه د مصـــــر پـــــه بـــــازار كښـــــې اوســـــم

هغــــــــه د امـــــــن او انصـــــــاف غوښـــــــتنه
لکـــــه دتېروخـــــت چرتـــــه غارکښـــــې اوســـــم

کله خپل داولس غم او کله د خپل مزدورغم دا ټول دشاعرد ژوند هلې ځلې دی،

يوخـــوا بربنـــدلغړبچي د خـــوار مـــزدور وينمـــه
بـل خـوا غټـان نشوکښـې مسـت مخمـور مخمـور وينمـه
خـدائيګوترې سـترګې زۀ پـه بـل خـوا آړولـے نـۀ شـم
چــې دوخــت ژرنــده کښــې دل شــوے خپــل جمهــور وينمــه

هوښـياران وائـي چـې شـاعران د قـام سـترګې وي خـو زۀ وايـم چـې شاعران د قام ژبه هم وي ځکه چې قام کومـه خبره پـه ژبـه کول غواړي اؤ نـه ئې شي کولے، هغه خبره اکثرپه خپلو غزلونو، شعرونو اؤ نظمونوکښې يا خوئې کړي وي اؤ يايې اوکړي، هغه که فرياد وي که د سوال منت خبره اؤ کۀ د وخت د ظالمانواؤ د سماج رواج نه بغاوت وي، هره خبره شاعر په خپل کلام کښې په ډېره آسانه اؤ پسته ژبه کښې په آسانه کولے شي لکه د اعجازصېب د يو نظم (احساس) يوڅو شعرونه زۀ دلته په دې حواله را آخلم، هغه وائي،

وايـم چـې تندرشـوے، آسـمان نـه پـرې راپرېـوتلے
چـــاچې زمــاداولس شـــونډو نـــه خنـــدا وړې ده
وايم چې اور شـوے ، ورتـه چغـه د غيـرت جوړه شـوے
چـــاچې زمـــونږ خـــوارو جـــونګړو نـــه رڼـــا وړې ده

داولس د غم سره سره ښاغلے ليکوال دنړۍ د مظلومانو نـه هم ځان ناخبره نۀ دے ساتلے اؤ دنړۍ د هر مظلوم غم يې يو شان ژړلے دے.

د فلسطين اؤ دکشمير په زمکه
خپـــرې تـــورې کـــوي، زغـــرې کـــوي
چـــې داعجـــاز غونـــدې لـــۀ ســـره تېـــر شـــي
هغـــــــه خبـــــــرې زړورې کـــــــوي

په دې حواله داعجازخټك صېب نظـم (آخـتردې مبـارك شـه) د باربـار لوستلو جوګه نظم دے.

اعجازصېب غزل کم اؤ نظم زيات ليکلے دے خو غزل يې د نظم اؤ نظم يې د غزل نه ډېر تاثيرلري، ډېره ساده او سوچه پښتو يې استعمال کړې ده. دډېرو ګرانو لفظونو، کنايو اؤ استعارو نه هم ځان بچ ساتلے دے چې هر سړې پرې پوهېږي، په هره موضوع يې ليکل کړي دي. پاتې د هرليکوال په ليك کښې څۀ نه څۀ کمے وي ځکه ورتـه دانسان ليك وائـي. دغـه شـان بـه د ښاغلي اعجازصېب په شاعرۍ کښې هم څۀ نه څۀ فني اؤ فکري خامۍ وي

خوماته په نظر نهٔ دي راغلي ځکه ما په دې خپلو خبرو کښې د تنقيدنه هيڅ کار نـــهٔ دے آخســـتے. بـــاقی د اعجازصـــيب شـــعري مجموعـــه ( شورشورخاموشی)ستاسو په لاسوکښې ده بايد چې ورته د قدر په نظر اوکتلے شـی اؤ خـدائے دې اوکـړي چـې د اعجازصـيب دا شورشورخاموشـی دپښـتون اولس دپوهې اؤ نېك مرغی سبب اُوګرځي(آمين ثم آمين)

په يوه پُښتنه ټپه دا خپلې خبرې راټولم اؤ ستاسو نه رخصتيږم،
اعجازصـــــــيب تـــــول دې دســــــيکې شـــــــه
چـــــې دښــــمنانان درســــره شـــــپاړس وخيژينــــه

په درناوي
بشيراحمدبشير
چئيرمين
داماراتوپښتو ادبي ټولنه مرکزدُبئ
۳۱ ٍ مئ ۲۰۱۲ ء.

# د اعجاز خټك اعجاز

دوه دېرش کاله مخکښې د اعجاز خټك او الیاس ټلوال په کوششونود اماراتوپښتو ادبي ټولنه مرکزدُبئ په وجود کښې راغله، اؤ تردمه ټولنه روانه هم ده او ودانه هم ده . روانه په دې معنی چه ادبی هلی ځلې يې په څۀ نۀ څۀ شکل دوام لري، ودانه په دې معنی چې دغړو تخليقات يې وخت په وخت مخې ته راوځي . په تيرو درې لسيزوکښې دې ټولنې خپل کار ته اکیډمئ ګوته په خولۀ کړه خو داسې هم نۀ ده چې جولۍ يې ببخې تشه ده .

هم دغه د خلیج اولنۍ ټولنه ده چې پښتو ته يې په خليج کښې د ټولنو چل اوښودلو. هم دغه اولنۍ ټولنه ده چې په خلیج کښې يې دپُښتو مشاعرو ، سیمنارونو او نورو ادبی غونډو بنیاد ايښے دے . هم دغه ټولنه ده چې بغير د چا د مکملې سرپرستۍ نه يې خپل وجود او دپښتو ادبی ذوق په خليج کښې ژوندے ساتلے دے. زۀ په دې خپلو کرښو کښې هڅه کوم چې دټولنې دهلوځلو سرسرى جائزه واخلم او په دې هرڅه کښې د اعجازخټك تاند او ځپاند رول څرګندکړم .

مشاعرې کول :

ټولنې ته دا اعزاز حاصل دے چې اولنۍ مشاعره يې په متحده عرب امارات –ُدوبۍ کښې اوکړه او پښتانۀ يې دلته په اول ځل دخپلې ژبې او ادب په نامه راغونډ کړل . دغه سلسله تراوسه پورې دوام لري . اعجازخټك يې دپیل نه تراوسه پورې د نظامت او انتظام لوئې ذمه وارئ په غاړه لری او دغه ذمه وارئ اعجازخټك داسې پوره کوی چې په متحده عرب اماراتوکښې ټول پښتانۀ ددې خبرې ګواهان دی چې په کوم ادبي پروګرام کښې اعجازخټك نۀ وی نوځۀ نۀ څۀ کمی به خامخا پکښې وی .

پښتونخواه نه شاعران اوادیبان رابلل :

ټولنې دپښتونخواه نه هم خپلو مشرانو شاعرانو ، ادیبانو وخت په وخت دوبۍ ته د راتللو تکلیف ورکړے دے چې دوئ راشي او په متحده عرب امارات کښې میشته پښتنو سره اووینی او په خپلو افکارو دپښتنو ذهنونو ته رڼا اوبخښی . په دې مشرانوکښې قلندر مومند، ايوب صابر، پرېشان خټك، سعدالله خان حېران، عبدالکریم بریالے، غازی سیال، سلیم بنګش ، پرویش شاهین اؤ اسیرمنګل چې دټولنې په دعوت راغلی دی. د دې هرڅۀ په انتظام ، نظامت، دمېلمنو لۀ پاره دشوی بندوبست، دمېلمنو قدرولواو نازولوکښې داعجازصیب منډه تړره او ناسته پاسته دهرچا نه زیاته وه .

سیمنارونه کول :

ټولنې دخوشحال بابا، رحمان بابا، عبدالحمیدبابا، حمزه بابا او

خاطرآپریدی سیمنارونه کړی دي ، په سیمنارونوآورولې شوې مقالې یې چاپ کړې دي او پښتنو ته یې رسولې دی او ددغوسیمنارونوپه راجوړولو او په کامیابۍ سره سر ته رسولوکښې د اعجاز صېب لوې لاس وۀ، دا هم په متحده عرب امارات کښې پښتنو ته د اعجازخټك بخښنه ده .

دتولنې غړو سره ماښامونو تابیا کول :

ټولنې وخت په وخت دخپلو غړو د زړۀ غښاوي لۀ پاره او دهغوئ دخدماتود اعتراف په توګه ملګرو سره د ماښامونو لړۍ پېل کړه . دغه هم د اعجازخټك آیډیا وه چې هم یې د ملګرو زړۀ غټاوے اوکړو او هم یې ملګری دي ته اوپارول چې په ملګرو لیك اوکړی او دغسې یې د ملګرو پام یې شاعرۍ سره سره نثر ته هم راوګرځولو چې په نتېجه کښې یې دملګرو لۀ خوادقدروړ لیکنې مخې ته راغلې .

مجله چاپول :

ټولنه په نزدو کښې انشاءالله د یوې خپلواکه ادبي مجلې خپرول غواړي او په دې سلسلې کښې تر ډېره حده پرمختګ شوے دے ، تراوسه پورې په دې حقله شوو هلوځلوکښې زمونږ ټولو نه وړاندې اعجازصېب روان دے

فلاحي کارونه :

اعجاز صېب نۀ یوازې په ادبي کارونوکښې ګرندے دے بلکه فلاحي کارونوکښې هم د چا نه پاتې نۀ دے. دپاکستان سوشل سنټر دبۍ د آفس سیکرټری شپ نه واخله تراوسه پورې دغه دخېرښېګړې کارونه خدائے پاك د اعجاز صېب نه آخلی . ددې خبرې ګواهی دلته ټوله پاکستان کمیونټی ورکولے شی .

د اعجازصېب شاعري :

داعجازصېب شاعرۍ په حقله زۀ بغېر دڅۀ پس وپېش نه دا وئیلے شم چې هغوئي شاعری صرف او صرف د دې دپاره کړې ده چې دپښتو ژبې شاعرانو، ادیبانو او د دې ژبې د خواخوږو سره ئې تعلق قائم پاتې شی .اعجازخټك باقاعده شاعری نۀ ده کړې اونۀ شاعرۍ دپاره دومره سنجیده شوے دے لکه پورته ذکرشوو کارونودپاره چې اعجاز صېب څومره سنجیدګی اختیار کړی ده ، په متحده عرب امارات کښې خوپرېږده چې دپښتوادبي چمن ټل لخوا شوې د ړومبی عالمی ادبی کنونشن د پاره ئې پوره دوه میاشتې خپل دوکان بندکړے وۀ. خپل ګاډے یې پوره دوه میاشتې زغلولے وۀ . بل هیڅ کار یې نۀ وو کړے . صرف اوصرف د چندې راغونډولو پسې در په در ګرځېدلے وۀ چې په نتېجه کښې دپښتوادبي کنونشن لۀ پاره لکونه روپۍ راغونډې کړې . د دویم پښتو عالمی ادبی کنونشن دپاره دراقم الحروف او فضل رحیم رحیم سره په درې ورځوکښې څلورشپېتۀ زره روپۍ غونډې کړې او اویې لېږلې . دپښتومینې اعجازصېب دقلم دمیدان نه زیات دعمل په میدان کښې زغلولے دے. اعجازصېب ته خپلې شاعرۍ کم او زیات معلوم دي، که

نور چاته پکښې څۀ کمے ښکاری نوزما په پورتنوکرښو دې لږ غور اوکړی چې د دغې کمۍ زیاتی سبب خو به د اعجازصیب دغه بېخی مصروفیات نۀ وی ؟کنې نوزۀ چې د اعجاز خټك نظمونه ګورم ، نو ماته په دې نظمونوکښې یو توان او توانائي ښکاری. کۀ چرې اعجاز صیب لږه توجه دې طرف ته هم کړې وے نو نن به اعجاز صیب د نظم په میدان کښې هم خپله ځانګړتیا په خپلو لوستونکو منلې وے . خو د دې هرڅه باو جود اعجازصیب په نظمونوکښې دپښتنو لۀ پاره د سماجی او معاشی انصاف غوښتنه دپښتنو لۀ پاره نېك بختو ورځو شپو ارمان او د پښتنو لۀ پاره د امن او خوشحالۍ نه ډك ژوند جوت ښکاری چې د اعجازخټك صیب ( دشورشور خاموشۍ) چاپ شی او پښتنو ته اورسی نو دا به د دې خبرې ثبوت وی چې د زړۀ مریض، دشوګر مریض، د بچوپه رزق پسې ورك سپین ږیرے، د خپلې شاعرۍ په کم او زیات خبر اعجازصیب ، دپښتو په مینه کښې یو قدم نور هم مخکښې لاړو .

پـه درناوی
ممتازآورکزے
صدر
داماراتوپښتوادبې ټولنه مرکزدبۍ
دوبی ۲۲ مۍ ۲۰۱۲ .

# داحساس بڅری

د کتاب خپروني مسله ډېره نازکه ، مهمه او د ارزښت وړ نقطه ده ځکه چې ډېر ښهٔ ښهٔ ليکوالان مونږ پېژنو چې خپل وړمبی کتاب چاپ کولو کښې ئې ډېره تادی کړې خوولې وروستو پرې بيا پښېمانه شوی او لهٔ مارکيټه او د ملګرو نه يې بيا د واپس آخستو هڅې کړې او ځنې ليکوالان داسې هم لکه سعيد ګوهر، صديق پسرلے ، شمس القمراندېش،خپرمحمد عارف يا سعدالله خان حېران چې په مناسب وخت يې کتابونه خپارهٔ نهٔ کړل ، د فکروفن نه يې د خپل عصر لوستونکی محرومه پاتې شول . په مطبوعاتوکې رانغلل ، څيرنې پرې اونه شوې چې لهٔ سوبه يې په خپل وخت ډېر آړخونه په تياروکښې پاتې شول او هغه مقام يې په برخه نهٔ شو کوم يې چې حق ووځکه ترېنه ډېرپه وړاندې لاړل . د ژوند غوښتنې بدلې شوې وې او د نوی کهول ترجيحات نورشول. دې کښې شك نشته چې ښهٔتخليق هرحالت ځان ښکاره کوی خودا هم حقيقت دے چې وختونه غواړی اوبيا دا خبره هم دياد وړده چې د هر وخت دفن خپلې تقاضې وی او خپل ارزښتونه او بيا په وخت نهٔ خپرېدو کښې کهٔ يو طرفته له خپلو نيمګړتياؤ نه تخليقکارخبر نهٔ شی نو بل طرفته د اسلوب او دافکارو د غلا امکانات هم موجود وی چې وروستوترېنه نورې ستونزې راولاړېږی.

ښاغلی تاج انور اعجاز هم چې هر څهٔ وجه وه خو په خپل مناسب وخت يې خپله شعری فنپاره خپره نه کړه . هرڅو کهٔ په دوبۍ کښې د پښتوژبې د خدمت په لړ کښې ادبي هلې ځلې کوی خونن به يې ديوتخليقکار په صفت نور هم ادبی قدوقامت لکه دچنار لوړ وے.

ښاغلے تاج انوراعجاز تقريبا ۱۹۷۰ نه تردې دمه ۲۰۱۲ پورې دوه څلوېښت کاله کېږی چې شاعری کوی کهٔ چرې دوی د ۱۹۸۵ نه تر ۱۹۹۰ پورې کتاب خپورکړے وے نو نن به يې دويم څهٔ چې دريم کتاب هم تيار وے او په ادبي حلقو کښې به د دهٔ په فن او افکارو له مختلفو آړخونو بحثونه شوی وے . له خپلو خوبئيو او نيمګړتياو نه به خبر وے او اوس هم د مواد په اعتبار دغه مجموعه شورشورخاموشي چې څومره عرصه واخسته ، هغه ضخامت هم نهٔ لری. د دې علت هم دا دے چې کله په يو ډنډ کښې اوبهٔ ولاړې وی نو ناولې شی او چې کله د وتو لاره ومومی نو بيا تازه او نوی اوبهٔ ورته راماتې شی هم دغه مثال د شاعری يعنې د ادب هم دے چې د يو کتاب خپرېدونه وروستود بل تا بيا شروع شی .

ديوڅوتمهيدی خبرونه ورستوچې شورشورخاموشي په موادو نظر زغلوو نو بيا وئيلے شو چې په دې مجموعه کښې په بنيادی توګه دوه ژانرونه

غزل او نظم پکارول شوی دي چې دواړه ژانرونـه خپـل ځـان کښـې ښوښـو نمونې لری . فکری حوالې سره انقلاب ، د پښتنی ټولنې ستونزې او مینـه یـې بنیادی موضوعات دی . په انقلاب یې مزاحمت روایتی دے چې لهجه یې ډېره علاقائي شوې ده چې له کبله یې فکر په هنر درونـد ښکاری . غـزل یـې د خپـل وخت په چوکاټ کښې روایتی نـهٔ دے . پـه ټولـه مجموعـه کښـې یـې خـارجی احساسات ، میلانات او واقعات پـه انـدرونی وارداتـو او جـذباتو غـالب شـوی . اندازیې په غزل کښې هم ترډېره حده نظم ته ورنزدې دے. خوکوم وخت کښـې چې دغه شاعری شوې دهغه وخت په حوالـه چې دپښتو پـه شـاعرئ کښـې بـه زیـاترذکرد ګـل و بلبـل او د جانـان دبـې وفـایئ وهٔ، ښـاغلی تـاج انوراعجازپـه شعوری توګـه ځـان ترېنـه ژغـورلے دے اودغزل لهجـه ئې دلاچې لونـګ پـه ځـائے د غوښوشونډو ده چې لوستونکی په دې نتیجـه رسـوی چـې ښـاغلے تـاج انوراعجاز خپل ټول صلاحیتونه دخپل قام دښېګړې دپاره دبیدارئ پـه نقطـه مرکـوزکړی وو چـې پـه ځنـګ کښـې ترېنـه د ژوندانـهٔ نـور حسـین او رنګـین تصـویرونه تـت پـاتې شوی دی چې د شعوربرخه پـه کښـې د لاشعورپـه مقابـل کښې زیاته په نْظر راځی او د فن په ځائے پکښې مقصدیت څرګند ښکاری . دا خبره هم ده چې فن مقصدی هم کېدے شی خو د خارجی چاپېرچل مقصدیت کله هم د فن بنیادی ارزښت نه دے پاتے شوے، دفن یوخپل قدر وی چې طویل بحث غـواړی خـوولې بیـا هـم ددې مجمـوعې اهمیت ځکـه شـته دغـه د ذوق یـا روحـانی خوشحالئ لـهٔ پـاره نـهٔ بلکـه فقـط دپښـتون قـام بیدارولو لـهٔ پـاره مختلفـو مرحلو نه راتېره شوې ځکه خوددې مجموعې معنوی آړخونـه مونږ پـه تلوسـو کښې دآچولو په ځائے نبغ په نبغه د قوم پرستئتحریکونو تـه چمتـو کـوی او د ټولنې د یو ذمه داروګړی شعور رابخښی په دغه حواله څو نمونې :

( نظم ------- احساس )

ملګـــرو ! مانـــه دســـرور ډکـــې نغمـــې مـــهٔ غـــواړئ
مانـــه د وخـــت دنمرودانـــو قصـــیدې مـــهٔ غـــواړئ
زهٔ د حـــــالاتو کـــــربلا بانـــــدې مـــــاتم کومـــــه
مانــه مــاتم کښــې دخنــدا ډکښــې قیصــې مــهٔ غــواړئ

(نظم ------ منزل )

چـــــــې مـــــــې لار تیـــــــارهٔ تیـــــــارهٔ وی
پکښـــــــــــې هـــــــــــم وی ګړنګونـــــــــــه
شـــــــل زمـــــــونږ دي پښـــــــې لاســـــــونه
داســـــې حـــــال کښـــــې بـــــه ملګـــــرو!
مـــــــونږ اورســـــــو منـــــــزل تـــــــه ؟

ملګـــــرو! زهٔ پـــــه داســـــې ښارکښـــــې اوســـــم
لکـــــه د مصـــــر پـــــه بـــــازار کښـــــې اوســـــم

ځنـــې ســـرونه مـــې لیـــدهٔ پـــه نمرخاتـــهٔ پرېواتـــهٔ
ځنـــې ســـرونه آخـــر غـــوخ شـــو، ورتـــه نـــهٔ پرېواتـــهٔ

فیصــــلې زمــــونږ د کلـــې چـــې پــــردی کــــړی
دغــــــه جــــــړ زمــــــونږ د ټولومســــــلو دے

مـونږه پـه سـرهٔ اورکښـې ژونـدون لـهٔ ډېـر ناکامـه کـوو
طمــع د ننــګ چـــې د بـــې حســـه ودهٔ قامـــه کـــوو

دکلام لهٔ کوټلی مُطالعې څخه وروستو لوستونکی په دې نتېجه رسی چې د کلام لهجه او ژبه د نن دورد لهجې او ژبې سره ډېر توپیر لری، پخواه به دشعری صنعتونو (صنائعو بدائعو) استعمال په بیل ډول کېدهٔ او د نننې دور دشعرژبه تخیلی او مکمل استعاراتی ده . دې مجموعې کښې کهٔ هرڅو د شعری ترکیبونو استعمال کم دے خومجموعی طورسره یې په لفظونو کښې فکری صداقت ئې غزونې کوی، د جذبې شدت او د احساساتو اظهارکښې اعتدالی امتزاج په مناسب ډول خپلوکښې غاړه غړی شوی او په لاچی کښې د ښاغلی سعدالله خان حېران د فکری مکتب روښانه مستقبل لهٔ پاره د پښتون قام بیدارولو ښهٔ هڅه ده خوجزوی طور باندې فکری سطح باندې پکار ده چې نننی پښتون لیکوال ته چې لږ سوچ وکړی چې پښتون قام بې حسه دے نه روز نا هرګزداسې نهٔ ده پښتون قام ته لیډارانو کړی څهٔ دی ربښتیا دا دی چې زمونږ قام بې حسه نهٔ بلکه ننګیالے دے ، دغسې د جمهوریت نظم کښې د اختلاف ګنجائش شته دے خو بیا هم پردې مجموعه کښې ډېرفنې نمګړتیا باوجود زهٔ دا خبره په وثوق سره کوم چې ښاغلې تاج انور اعجاز هم په غزل او هم په نظم کښې نهٔ خو د چا تقلید کړے دے او نهٔ یې د چاپه پل باندې پل ایښے دے ، هرڅهٔ چې دی د خپل کلام پېژندګلی یې خپله ده .

خالدپښتون
۱۸ اپریل ۲۰۱۲ء
کوهاټ

# اعتراف

چرته زۀ ، چرته شاعري لکه وریژې اؤ د منجا زامن ،هم داسې قصه زما دشعروادب ده. دا هرڅۀ اتفاقاً شوی . زمونږ پوره کورنۍ کښې هیڅ داسې یو مشر نۀ دې تېر شوے چې هغوی په دې جرم ککړشوی وی . زمادومره یادېږی چې زمونږ یو ماما صدیق چې یو سماجي انسان وۀ، هغوی به ماته په وړیکتوب کښې فی البدیه شعرونه وئیل ، کېدے شی چې د هغې اثرلاندې ما هم په شعرونه شخوند وهل شروع کړی وي ، لږ چې د ځوانۍ عمرته اورسیدم یعنې هغه وخت په لسم جماعت کښې طالبعلم وم چې زمونږ استاد محترم سعدالله خان حیران راباندې په زور دشاعرۍ ستر مات کړو اؤ داسې چې په کال ۱۹۶۹کښې د ګلستان پښتوادب لاچۍ د اهتمام لاندې طرحي مشاعره ټاکلې شوې وه ، زۀ اؤ زما همځولي شاعران پکښې هم بللے شوي وو، ما هم پکښې خپل مات ګوډ غزل پېش کړو، زمادومره حوصله افزائي اوشوه چې هغه ورځ ده اؤ دا نن ورځ ده چې کۀ خپله کۀ هیڅ شعروادب په الف ب پوهې نۀ شوم خو مشاعرې اؤ ښوښو شاعرانو سره مې ناسته پاسته تراوسه پورې جاري اؤ ساری ده. یو ملګري راته وې چې ستا دپاره ما دوائي راوړي ده کېدے شي چې دا مشاعرو نه قلار شې ، ټول عمر دې په دوخوشو کارونوکښې تېر شو. ماورته وې چې زما دا بیماري ډېره زړه شوې ده، کېدے شي چې ستا په دې دوائي زما شمر اونۀ شي . رښتیا خبره دا ده کومې پښتو زۀ په ټولې ادبي نړۍ پېژندلے یم اؤ دومره به ما پښتودپاره څۀ نۀ وي کړي لکه څومره چې زۀ خپلې پښتو شته من کړے یم ګنې پکار خو دا وو چې په دوه څلوېښت کاله کښې ما ډېر څۀ لیکلے اؤ پښتو ته جولۍ کښې آچولے وے خو زۀ دا اعتراف کوم چې زۀ دخپلې پښتو یو غټ مجرم یم اؤ دومره مودې پس ایله بیله یو دخپلې ماتې ګوډې شاعرۍ مجموعه وړاندې کوم اؤ هغه هم د یوډېر مخلص ملګري بلکې د یو ورور په ډېره ټینګه وینا دا مجموعه وړاندې کوم ګنې زما هډو دا خیال نۀ وۀ چې زۀ به هم چرته په ژوندکښې دا څۀ چاپ کړم . الله تعالی دې زما دغه ورور ته لوې اجرورکړي چې زما شاعري یې د چاپ جوګه اوګڼله .

دګــران مشــر م، ر، شــفق صــېب، زمــا دتــورو ځنويــار ســعادت سحرصيب، زما غار يار بشير احمد بشير، ، دمسافرۍ دژوند د تودو سړو ملګري اؤزيرك انسان ممتازآورکزئي صېب اؤ زما دبي مخه بي ستِه نقاد ملګري خالد پښتون دليکونو چې زما کلام يې ادبي دنيا ته رسولو ناکام اوکړو، ډېر زيات ممنون يم ګني چرته زۀ اؤ چرته دا شعرونه چاپ کول داسې ناممکن غوندې کار وۀ خو دا هرڅۀ چې دي، يوزما يو داسې کوشش دے چې هيڅ داد نۀ غواړم خوبس دومره چې کېدے شي چې زما کلام څوك اوګوري نو دخپل کلام چاپ کولو هڅه به ضروراوکړي اؤ دا به زما دپاره يو لوئې داد وی .

**په درناوي**
**خاوري اعجازختټك دوبئ**
۷ جولائي ۲۰۱۲ء

# جنت

۱۹۷۶ء

زړۀ راتــه وې راځــه ددې دنيــا جنــت تــه لاړ شــو
هلتـــــه د خپلــــو ارمـــــانونو ارمــــان اوريــــــژوو

مــا وې چــې تــا ددې دنيــا جنــت ليــدلے دے څــۀ؟
وې چـــې جنـــت څـــۀ وي؟ پـــه خپلـــه خوښـــه ژونـــدتېرول

مــا وې چــې دا جنــت بــه چرتــه وي راوئــې ښــايه
وې چــې راځــه چــې درتــه لارې د جنــت اوښــايم

زۀ پــه مــزه مــزه روان شــوم د جنــت پــه لــوري
څــۀ ګــورم لارکښــې مــې يــوه لــوړه غونــډۍ اوليــده

مــا وې چــې داغونــډۍ دڅــۀ ده دومــره دنګــه لــوړه
وې چــې هــم دې غونــډۍ دلانــدې جنتيــان اوســيږي

مــا وې چــې دغــه خلــق دې جنــت تــه څنګــه راغلــل
نوماتـــه خپـــل پـــه غوږکښـــې داســـې ګنګوســـه اوکړلـــه

وې د ضـــــميرلوړې غونـــــډۍ نـــــه غورځېـــــدلی اول
پـــه پټـــو ســـترګو دې جنـــت تـــه رســـېدلی دی بيـــا

د ژونـــد بـــازي هـــم دغـــو خلقـــو همېشـــه ګټلـــې
دا بـــې ضـــميره خلـــق ځکـــه جنتيـــان يـــادېږي

دوئ تـــه روا او نـــاروا ګـــوره يـــو شـــان ښـــکارېږي
دوئ تـــه والله کـــه بـــل انســـان خـــو څـــۀ انســـان ښـــکارېږي

د بـل پـه غوښـو خاربـهٔ شـوی، غړمبېـدلی دی ډېـر
دا پـــه شـــرابو لمبېـــدلی، پړســـېدلی دی ډېـــر

تـهٔ هـم کـه غـواړې چـې ددې دنيـا جنـت تـه راشـې
نـو د ضـمير لـوړې غونـډې نـه ځـان ګـوزار کـړه اول
تـــهٔ بـــه پـــه خپلـــه دې جنـــت تـــه بـــې منتـــه راشـــې
وخـــت بـــه دې خپلـــه جنتـــی ددې دنيـــا اومنـــی

تاتـــه بـــه خلـــق پـــه هـــره لاره ســـلامونه کـــوی
ستا پـه هـر ځـاے بـه خلـق ډېـر ډېـر عزتونـه کـوی

تـا تـه بـه خلـق بيـا ووټونـه ښـهٔ پـه جـار درکـوی
هـــر حکومـــت بـــه تاتـــه خپلـــه اقتـــدار درکـــوی

تـــهٔ بـــه پـــه خپلـــه جنتـــی ددې دنيـــا يـــادېږې
او پـس لـه مرګـه ښـهٔ سـړے بـه پـه دنيـا يـادېږی

سـتا وروسـتو مخکښـې قطارونـه د موټرو بـه وی
ســـتا حفاظـــت تـــه اهتمـــام د برېتـــورو بـــه وی

مـــا چـــې د زړهٔ دغـــه رنګينـــه قصـــه واورېدلـــه
مـــا وې چـــې اے زمـــا ســـاده زړګيـــه! اوغوليـــدې

دغـه چـې تـا وتـه جنـت ښـکاری، جنـت خـو نـهٔ دے
دلتـه خـو يـو انسـان آقـا، نـور غلامـان دی پکښـې

ورځـه ورځـه دغـه جنـت دې هغـه چاتـه يوسـه
چـې د ضـمير پـه بـدل داسـې جنتونـه غـواړی

زمـــا جنـــت د هـــر انســـان د خپلـــواکۍ نـــوم دے
دې تـــا جنـــت د يـــو انســـان د غلامـــۍ نـــوم دے

زمـــا جنـــت خـــو د يـــو بـــل نـــه زارېـــدلو نـــوم دے
دې تـــا جنـــت د يـــو انســـان د پرزولـــو نـــوم دے

مـــا چـــې لـــه خدايـــه کـــوم جنـــت غوښـــتے آدا خـــو نـــۀ دے

دغـــــه جنـــــت دې هغـــــه چاتـــــه يوســـــه
چـــې د ضـــمير پـــه بـــدل داســـې جنتونـــه غـــواړی

٢٠ اګست ١٩٩٠ء دوبۍ

.....✸✸✸.....

# احساس

ماته د وخت ختلی نمر ته تیتېدل نهٔ راځی
ما ته دعشق اودمستی نه ډک غزل نهٔ راځی
زهٔ د اولس په غم لړلی مرثیې لیکمه
دې نه سبوا راته په بل څهٔ څهٔ لیکل نهٔ راځی

ملګرو! ما نه د سرور ډکې نغمې مهٔ غواړئ
ما نه د وخت د نمرودانو قصیدې مهٔ غواړئ
زهٔ د حالاتو کربلا باندې ماتم کوومه
مانه ماتم کښې دخنداډکې قصې مهٔ غواړئ

منم چې ستاسو زړهٔ رنګین رنګین شعرونه غواړی
ماته خولې خولې مزدورډکراچی مخکښې شی
وایم چې تاسو ته مې شونډې زلفې اوستائیلے
راته بدحال د خپل اولس د بې وسی مخکښې شی

داوچې شونډې چې وختونوترې خنداوړې ده
دخواراولس دشونډوکومې رنګینی اوستایم
ملګرو! وایئ چې مستی او که ماتم اوستایم
تاسوخوشحال کړم اوکهٔ خپلې بې وسی اوستایم

یو خوا بربند، لغړ بچی دخوار مزدور وینمه
بل خواغټان نشوکښې مست مخمورووینمه
خدائیګو ترې سترګې زهٔ په بل خوا اړولے نهٔ شم
چې د وخت ژرنده کښې دل شوے خپل جمهور وینمه

وایم چې تندر شوے، اسمان نه پرې راپرېوتلے
چا چې زما د اولس شونډو نه خندا وړېده
وایم چې اورشوے، ورته چغه دغیرت جوړه شوے
چا چې زمونږ خوارو جونګړو نه رڼا وړېده

زۀ یو شـــاعر یمه چـــې چرتـــه ښـــوک ســـلګی اوو هـــی
زمـــا پـــه زړه کښـــې د آهونـــو د نـــدوکار جوړ شـــی
وخـــت چـــې د چـــا د ارمـــانونو مـــری اوخر پـــوی
ورســـره ســـم زما پـــه زړۀ کښـــې ویـــر نـاتـــار جـــوړ شـــی

زمـــا شـــاعری ده، د اولـــس د ســـوکالی لـــۀ پـــاره
زۀ خـــو لیکـــل کـــوم د ژونـــد د خوشـــحالی لـــۀ پـــاره
زۀ خپـــل غـــزل تـــه چرتـــه ډمـــه ګـــډولے نـــۀ شـــم
نـــۀ شـــم کـــولے شـــاعری د خرمســـتی لـــۀ پـــاره

۱۹۷۶ء لاچی

.....✸✸✸.....

# تــکل

د ښائیســـــت او د ښـــــکلا پــــه کلــــو ګـــــرځم
پکښـــــــي مینـــــــه او وفاګـــــــاني لټومـــــــه
رنګینـــیٔ چـــي د نظـــر کچکـــول کښـــي راوړم
تصــــــویرونه تـــــريې د ښــــــکلی جوړومـــــه
تخیـــل چـــي زمـــا مســـت شـــی نـــو اوخانـــدم
ځـــــان ســـــره ټولـــــه دنیـــــا اوخاندومـــــه
داسـي وخـت کښـي مـي احسـاس راولړزيږی
ځــــو شـــــعرونه پـــريې د ســــوی زړۀ لیکمــــه

کلـــه کلـــه چـــي د ژونـــد بـــازار تـــه لاړ شـــم
لــــوټ پـــــه بیعـــه انســــانان پکښــــي خرڅيـــږی
مــــا ســــودا د خپـــــل ضـــــمیر پکښــــي کولــــه
وي چــــــي دا دلتـــــــه پربمانـــــــه ملاوېـــــږی
نوراسـتون شـوم خپـل تنـدی تـه مـي ټـق ورکـړو
مــا وي دلتـــه کښـــي خـــو مـــړه خلـــق اوســـيږی
ســــړيتوب نـــــه دلتـــــه خلقــــو لاس ويـــــنځلے
بــــس چـــړيې د ظلـــم يـــو پـــه بـــل ګزېـــږی

بیــا راوان شــم، د احســاس پــه نیلــی ســور شــم
وردننـــــه پـــــه ســـــپین کـــــور شـــــم د پړانګـــــانو
مـــا وي خېـــر د امـــن غواړمـــه لـــۀ تاســـو
اے د امـــــــن دعـــــــوه ګیـــــــرو انســـــــانانو
فلســطین او پـــه کشـــمیر کښـــي چرتـــه اوریٔ
دا بـــــي وســـــه شـــــان ســـــلګیٔ د مظلومـــــانو

د غیـــرت کـــور مـــو کابـــل شـــو لـــوټي لـــوټي
ککـــــــریٔ پکښـــــــي الـــــــوځی د ځوانـــــــانو

بې نوا بيا د قامونو کور ته لاړم
ما وې امن پسې دلته يم راغلے
خو افسوس هلته قصه څهٔ اپوټه وه
هر کمزورے وهٔ لېوانو پرزولے
دلته مور د امن مړه خو لا پخوا وه
دا لا څا وې چې مظلوم دے چا ژړلے
د کمزورو دلته حق د ژوندون نشته
د ژوندون حق يې هيچا نهٔ دے منلے
سوداګانې د يو بل پکښې کېدلې
دا قصې مې هلته ډېرې اورېدلې

نو بيا راغلم خپلې خړې پښتونخوا ته
ما وې ځان کهٔ په دنيا پېژندل غواړې
نو راويښ شئ ګنې وخت به داسې راشي
هيڅ به نهٔ شئ کهٔ بيا ډېر څهٔ کول غواړې
حق غوښتے نهٔ شي په زور اخستے کېږي
نو راپاځئ کهٔ خپل ځان مو ګټل غواړې
ګورئ نه چې د برلين دېوال راپرېوت
نور به څهٔ نمونه تاسو ليدل غواړې
دکوريا خلق هم ګوره يو ځاے کېږي
د ترړون رسۍ به کله نيول کېږي

د نړۍ د واقعاتو سبق واخلئ
دا ترڅو به تاسو خپله کښې جنګېږئ
هر بابا درته ويلې دا صفا دي
کهٔ ويښ نهٔ شوئ پښتنو! ګوره ورکېږئ

آګست ۱۹۹۰ء دوبۍ

.....✸✸✸.....

# د شپونکی سندره

ځنـــــو واورېـــــده کانـــــهٔ شـــــو
ځنـــي پــوه پـــرې هــــډو نـــهٔ شـــو
لـــــر او بـــر کښــــي آورېـــدے شـــوه
د شــــــــپونکی د خلــــــــي ســـــــندره
چـــــي چــــا واورېــــده کنــــــهٔ؟

وې چـــي خـــداے پـــاک پیـــدا کــړی
پــــه خپــــل فضــــل پښــــتانهٔ دی
ګـــران پـــه مـــا چـــي لـــهٔ هــــر څــهٔ دی
د مـــــــــــودو راســـــــــي ودهٔ دی
بـــــس هـــــــم دا راویښـــــوومه
لیـــــــونی د خلـــــــي خبــــــرې
چـــــي چــــا واورېــــدي کنــــــهٔ؟

تـــــر آتـــــهٔ ســـــوه کـــــالونو
چـــي یـــي راج کړلـــو پـــه زړونـــو
د پښــــتون پـــه نـــوم تـــر عمـــره
یـــــــــادولو تــــــــــاریخونو
هغــــــــه قــــــام راپاروومــــــــه
ورتـــــــه ځـــــــان وریادومــــــه
د شـــــــپونکی د خلـــــــي ســــــندره
چـــــي چــــا واورېــــده کنــــــهٔ؟

د خپـــــــل زوره خبـــــــر نـــــــهٔ دی
ګنـــــــې نـــــــهٔ دی دومـــــــره مـــــړی
ښـــــهٔ ســــاده دی ښـــــهٔ ســــپین زړی
دا څـــــوک نـــــهٔ غـــــواړی هیڅکلــــــه
چـــــې دې ویښ شـــــی دا وګـــــــړی
دنیـــــا اوختــــــه ســـــپوږمۍ تـــــه
دوئ پــــه خپلــــه کښــــې اختــــه دی
وې چـــــې دوئ بـــــس پوهـــــه وومـــــه
ســــــړیتوب ورتــــــه ښـــــایمه
د شــــــپونکی د خلـــــــې ســـــــندره
چـــــې چــــا واورېــــده کنــــهٔ؟

چـــــا چـــــې واورېــــده روان شـــــو
نــــهٔ پـــه ځــان نــهٔ پــه جهــان شــو
ځنــــــو وې چــــــې کــــــافران شـــــو
مــــــا وې ښـــــهٔ مســـــلمانان شـــــو
د ایمــــــان خاونـــــــدانان شـــــــو
خــــــو نــــــهٔ دا یــــــې چــــــړې اووې
د جنـــــــت ټېکــــــــه داران شـــــــو
نــــــهٔ یــــــې دا خبــــــره اوکــــــړه
چـــــې اســــــلام تـــــه خطــــــره ده
بــــــس همدغــــــه څـــــــو کســـــــانو
د شــــــپونکی د خلـــــــې ســـــــندره

دا ســـــــندره تـــــــل وئیلــــــــه
خپلــــــــواکی د خپلــــــــو خلقــــــــو
مــــــونږ پــــــه خپلــــه خــــاوره غـــــواړو
دا وطـــــــن مــــــو پــــــلار نیکونــــــو

پـــــه ســــــرو وينــــــو دے ګـــــتلے
نــــــن پـــــــرې ګېـــــده راچـــــولې
څـــــو پړانګـــــانو څـــــو لېوانــــــو
نـــــو مــــــونږ دا نـــــهٔ شـــــو زغملــــــے
چـــــــې بـــــــه دوئ ټېکـــــــداران وی
پکښـــــــې مـــــــونږه بـــــه خـــــواران وو
بـــــس هـــــم دا نـــــهٔ شـــــو کـــــولے
ځـــــان تـــــه حـــــق غـــــواړو پـــــه نـــــره
خـــــــو يـــــــوه خبـــــــره واورئ
کـــــهٔ يـــــو ځـــــان نـــــه شـــــو ملګـــــرو
لاس بـــــــــــــه مـــــــــــــرووړو
بيـــــــــــــا بـــــــــــــه ژاړو

.....✸✸✸.....

# زۀ او تۀ

تـۀ دې ورځ پـه ورځ غټېږې، زۀ چـې خـوار یـم لا دې خوارشـم
تــۀ خــووېنې دخپـل قــام ښې، زۀ دې هســې ګهنګــار کــړم
دا لا څرنګــې انصــاف دے، داســې ولــې اخــر کېـږی
زۀ پـه دې خـاوره پیدا یـم، ولـې بیـا دې هـم غـدار شـم

ســـتا بچـــی دې ســـبق وائـــي، پــــه لنـــدن او امریکـــې کښـــې
او زمــــا بچـــی لګیـــا دی، ښپـــر لانـــدې مدرســـې کښـــې
ســـتابچی چـــې دلتـــه راشـــی، پـــاتې کېـږی بـــه بنګلـــې کښـــې
او زمــــا بچـــی بـــه ناســـت وی، څوکیـــدار یـــې دروازې کښـــې

دا لا څرنګـــې قصـــه ده، چـــې لنـــډېږی نـــۀ اوږدېــږی
دا څـــۀ داســـې ماشـــوره ده، چـــې ورانېــږی نـــۀ ســـمېږی
د مغـرب خبـرې دلتـه پـه مشـرق کښـې چـې چلېـږی
دا زمـا نېسـتی بـه دلتـه، خـدائیګو کلـه نـه غـوځېږی
دا تـۀ تـۀ یـې او زۀ زۀ یـم، دا قصـه چـې ختمـه نـۀ وی
دا د ځـــان ځـــانی خبـــرو دبدبـــه چـــې ختمـــه نـــۀ وی
د زورګیـرو پـه دې زمکـه، دبدبـه چـې ختمـه نـۀ وی
ســـتا پـــه ســـر کښـــې دا زمـــا د ســـر ســـودا چـــې ختمـــه نـــۀوی

ستـا بـه سـر تـه خطـره وی، همېشـه بـه زۀ پـه دار ووم
ســـتا خوبونـــه بـــه حـــرام وی، زۀ بـــه هـــم پـــه هـــاے ناتـــار ووم
تـۀ بـه دغسـې څربېږې، زۀ بـه هـم دغسـې نـادار ووم
دغـه زمکـه زمـا مـور ده، زۀ بـه تـل ورځنـې ځـار ووم

دازمــــا او ســـــتا خبـــــره د آقــــا او د غـــــلام ده
تـــهٔ هــوس یــې پــه مــخ کــړے، ســتا مقصــد عــېش و ارام دے
ســتا بــه لاس کښــې چــې زهٔ ویــنم، د غریــب د وینــو جــام دے
ماتـــه ژونـــدزماپکار دے، دا زمـــا د ژونـــد ناکـــام دے

چــې لنــدن او امریکــې کښــې تــهٔ زمــا ســودا کــوے شــې
ځنګـه ژونـد بـه بیـا لـهٔ مانـه پـه دې مځکـه تېـروے شـې
زهٔ به مینه ټول په ټول شم، که تـه داسـې هم کـوے شـې
خپلــواکی د پــلار پــه وینــو کــهٔ ګــټلے راکــوے شــې

تــهٔ مــې ســر ټیټــول غــوړې، داســې کلــه زهٔ کــوے شــم
مــا کــهٔ تــهٔ آخســتل غــواړې، نــو زهٔ کلــه خرڅېدے شــم
کــهٔ تــهٔ مــا خپلــول غــواړې، نــو زهٔ مینــه درکــوے شــم
کـــهٔ جنـــت جـــوړول غـــواړې، نـــو زهٔ مینـــه درکـــوے شـــم

دلتـــه ســـر د یـــو انســـان دے، هلتـــه تـــا جـــوړ کـــړے دار دے
تـــا جـــوړ کـــړے لا زمـــونږه پـــه ســـرونو اقتـــدار دے
خــو کــهٔ وطــن جــوړول غــواړې، دا وطــن بــه ټــول جنــت شــی
زهٔ او تــهٔ بــه جنتــی شــو، پــه نصــیب بــه مــو راحــت شــی

.....✸✸✸.....

# مینه او وطن

مـــا بـــه تـــرخ کښــــې کتابونـــــه وو نیـــولی
پـــاس پـــه بـــام یـــوه جینـــــۍ بـــه وه ختلـــې
زۀ چـــې تلـــم پـــه کومـــه لار بـــه مدرســـې تـــه
دې خنـــدل بـــه راتـــه پـــټ پـــټ غلـــی غلـــی
مـــا بـــه وې چـــې لا وړه ئـــې نـــۀ پـــوهیږې
زمـــا لار کښـــې یـــۀ جینـــۍ! ځلـــه اودرېـــږې

دې بـــه هـــره ورځ پـــه ګټـــو زۀ ویشـــتلم
دې بـــه خامخـــا مـــدام داســـې چیـــړلم
د دنیـــا او مافیهـــا نـــه نـــاخبره
دې بـــه ماتـــه زۀ بـــه دې تـــۀ خندېـــدلم
مـــا وې هســـې نـــۀ خبـــره دا د نیـــا شـــی
دغـــه خلـــق بـــه دښـــمن زمـــا او ســـتا شـــی
دې بـه وې چـې زه لـیلا تـۀ مـې مجنـون یـې
زمـا زړۀ او زمـا، ځـان زمـا ژونـدون یـې
دې وې زۀ کـــۀ څـــۀ پـــروا ددې دنیـــا کـــړم
بـس یـو تـۀ، زمـا د سـوی زړۀ سـکون یـې
زۀ پـــه دې او دا پـــه مـــا بـــه نازېدلـــه
هــیڅ پــه ســود او زیــان د ځــان نــه پوهېدلــه

دا جینـــــۍ چـــې ورو پـــه ورو رالوئېدلـــه
چـــم ګاونـــډ کښـــې ډېـــرو خلقـــو اوغوښـــتله

بې زما نه يې څوک خوښ په دنيا نهٔ وو
ما هم ځکه دا په مينه اوکوئېدله

نو روان د ژوند په لار غاړه غړی شو
خپل خپلوان مو د وادهٔ، په تيارۍ شو

د وادهٔ نېټه مو راغله، رانــزدې شوه
آخر ناوې شوه، ډولۍ کښې کښېناستله
مور او پلار په دعاګانو دا رخصت کړه
په سندرو کښې همزولو اوستائيله
په جامو کښې نن دا کله ځائېدله
سرې ډولۍ کښې زمونږ کور ته چې راتلله

په حجره کښې درزاهار وهٔ، د ډولونو
يو باران وو نن په ما د سرو ګلونو
چې يو غږ شو هلته شابه زلمو پاڅئ
ضرورت دے نن وطن ته د سرونو
ګڼې هسې هم بې نومه بې نشان يئ
په تاريخ کښې که ياد شوی سربازان يې

ما وې نن مې چې وطن ته ضرورت دے
دا يم وراغلم چې زه ورنه قربان شم
ما وې نن مې په وطن شوے يلغار دے
کهٔ دا اونکړم نو ورک به لهٔ جهان شم
ما وې مينه، وينه دواړه به ترې ځار کړم
غاښ به مات د هر غليم د هر غدار کړم
دوبۍ ۱۹۷۴

.....✸✸✸.....

# زما وطن

چې پرون وۀ، هغه نن دے
هغه ملک ، هغه وطن دے

هر چا اوخوړو کۀ هر څو
ولې بیا هم ډېر شته من دے

د اسلام په نوم جوړ شوے
پکښې زور دے د خدایانو

زما هېر برکت شاه شی
دا چې اوخوړو پړانګانو

زما لاس کښې چې ټوپک دے
او د امن کرم غوښتنه

مېړتون باندې چا کړې
د لړم د سر ساتنه

دا خو داسې رنګ قصه ده
چې مجنون یم لیلا غواړم

داسې حال کښې زۀ ملګرو
د وطن سندرې وایم

۴۱ اګست ۲۰۰۰

.....✸✸✸.....

# پښتنه مېرمن

چې یادېږي همتناکه، حیاناکه، مینه ناکه
پښتني غونډې به ښځه په دنیا کښې څوک پیدا که

شی د غوا غوجل نه سترې، په کټوې کړې لاس ورپورې
د روټو ټبا کړې سمه، بیا تنور سره به ئې ګورې
یو خواکړې، بل خواپشې، اے میراته شې اے کورې
اے آخته په نوې رنځ شې، کړې بچو ته ستغې سپورې
د سحر نه تر ماښامه، کوی داسې چارې نورې
په دنیا کښې چرته وی به داسې بله زورناکه
چې ستائینه دعظمت یې په داخوی تولـه دنیا که
دکچه خښتو په کور کښې دا د حسن شهزادګی وی
د حیا په لوپټه کښې یوه ښکلې ښاپیرۍ وی
داپه کورکښې راحصاره لکه بنده چې هوسۍ وی
هیڅ په خوند د ژوندانهٔ که پوهې دا د زندګی وی
دپښتون دکورمېرمنه، دخاوند د پښو خپلۍ وی
دا مظلومه حقیقت کښې یو نامه د بندګۍ وی
کهٔ هر څو ډېره زورېږی، دا نهٔ اُف کوی نهٔ اه که
په دنیا کښې چرته وی به داسې بله همتناکه

چې خاوند یې غرۀ نه راشی، ورته داسې دا خندا کړه
بیا جاجوس په منده راوړي، ورته دا ډکه پیاله کړه
ستومانی د ټولې ورځې پۀ یو دم ئې دا فنا کړه
تبر، لور ورنه سنبال کړی، ډکه دا ورته پیاله کړه
دا رنګ مینه، خدمتونه د خاوند همیشه دا کړه
په دنیا کښې چرته وی به داسې بله همتناکه

دایې لاس وپښې چاپی کړی، ترهغې چې دابنه دمه شی
دپښتون دکور مېرمنې، زړۀ بیاهغې وختې ښه شی
.....✸✸✸.....

# اعلان

د سحر نه تر ماښامه
شپه او ورځې به لګیا وی
کرونډې او اوبهٔ خور به
دهٔ په وچ اوکړسېدلی
وجود هره ورځ کولو

دا سپین ږیرے هر سحر به
لهٔ خپل کوره راوتلو
چې ماښام به کور ته لاړو
چرته سېر نیم وړهٔ بچو ته
په خیرن څادر کښې یوړو

خداے بچی وو ډېر ورکړی
ژوند یې څهٔ وهٔ یو دوزخ وهٔ
پکښې دا به سوزېدلو

په دلو دلو غنم به
د خان کور ته یې لېږلو
خو ددهٔ په خوار قسمت کښې
یو چپه وچه ډوډۍ وه

یوه ورځ سحر وختي چې
کله دا راپاڅېدلو
شهزادګۍ د ژوندانهٔ ترې
لرې لاړه هغه ځاے ته
چې ترې بیرته هغه ځاے نه
هیڅوک بیا نهٔ دی راغلی

نو ملا صیب د جماعت نه
دا اعلان اوکړو ملګرو!
چې د برکلي خانانو
هغه خوار غریب نوکر یې
ماسپښین لمانځهٔ نه وروستو
ددهٔ خوار به جنازه وی
دا به خوارو ته سپارے شی

جنازه چې د سپین ګل کاکا
لهٔ خپل کوره راوتله
خپلو لونو او ځامنو
ورته سقاط کښې خپلې اوښکې
تویولې او لیږلې

دا د هغه چا نوکر وهٔ
چې په کور کښې هره شپه به
خرمستی دی چې کېدلې
خو د دهٔ خوارو بچو ته
سپورې ستغې او دیکې وې

هغه کور د لوئ خان وهٔ
هلته تل شراب کباب وو

دغـــــه کـــــور د يـــــو غريــــــب وۀ
دلتـــــــه لـــــــوږه، دلتـــــــه تنـــــــده

د غريـــــب ســـــړی پـــــه کـــــور کښـــــې
وچ ســـــوکړک تشـــــې شـــــوملې وې
ډېـــــر ځـــــامن او ډېـــــرې لوڼـــــه
دا يـــــې لويـــــه ســـــرمايه وه

.....✸✸✸.....

# دا څوک دے؟

په زړو لارو روان دے
عجيبه غوندې انسان دے

نه خبر له خپله ځانه
نه خبر له دې جهان دے

دا چې چرته ګټه ګوری
نو ختلے تر اسمان دے

که يې هلته کار اونه شو
بيا په بل خوا دا روان دے

وروستو مخکښې هيڅ نه ګوری
نه په سود او نه په زيان دے

که تا غوړه ګوته ورکړه
نو بيا تا ځنې قربان دے

څه چې زړه ورته اووائی
هغه کار پسې روان دے

زړور دے خو بيا ولې؟
د ورور مرګ ورته اسان دے

په ترخې دا نه پوهيږی
خوئ يې دا رنګ څه بل شان دے

په خبرو دے که پوهه کړې
نو بیا سخت لکه سندان دے

خو افسوس چې نۀ پوهیږی
بس یو دا پکښې نقصان دے

ګنې عقل، فکر ډېر هم
خدائے ورکړے ښۀ پرېمان دے

دا په خپله ځان ته سپر دے
ددۀ بل شانې ګزران دے

ددۀ چرت نه خرابیږی
څوک سپوږمۍ ته کۀ روان دے

دا چې اورسی پنجاب ته
بیا یاد شوے دا په خان دے

کۀ دا لاړ شی کراچۍ ته
خلق وائی چې پټان دے

دا په خپله هرځۀ، هرځۀ
دا په ما باندې ډېر ګران دے

چې زما د قام زلمے دے
زما روح دے، زما ځان دے

.....✸✸✸.....

# آزادي

هغــه ازادي چــې مــونږ پــه ســرو وينــو ګټلــې ده
تــش د زنــده بــاد پــه نعــرو مــونږه تــل پــاللې ده

هغــه ازادي چــې مــا وې جــوړ د امــن کــور بــه کــړم
هغــه مــې لــۀ ســره نــه ليــدلې، نــه مونــدلې ده

هغــه ازادي چــې مــونږ د ســر پــه بــدل غوښــتې ده
هغــه اقتــدار دپــاره مــونږ نيمــه بــائيللې ده

هغــه ازادي چــې خوشــحالي اوســوکالي راوړي
هغــه هــره ورځــې هــره شــپه مــونږه ژړلــې ده

هغــه ازادي چــې د اغيــارو منــت بــاره ده
هغــه خــو نــن ځکــه دم ختلــې، ســاه رابنــکلې ده

هغــه ازادي چــې دشــپونکې د خلــې ســندره شــي
هغــه د خيبــر پــه دنګــو غــرو کښــې غلــې غلــې ده

هغــه ازادي چــې مــونږ تــه زېــړے د ســحر راوړي
هغــه تــورو شــپو کښــې د حــالاتو مــونږ ليــدلې ده

هغــه ازادي چــې مــونږ يــې غــواړو ولــې نــۀ راځــي
هغــه بيــا لــۀ ســره د ســرونو قربــانۍ غــواړي

هغـه ازادی چې مونږ یو موټی، یوه خلـهٔ کړي ټول
هغــه ښــهٔ پــه زوره ترانــه د افغــانی غــواړی

هغــه ازادی چې ټـول وطــن پــرې مینــه مینــه شــی
هغـــه د اعجــاز غونـــدې ســـرتېره لېـــونی غـــواړی

۱۴ اګست ۱۹۹۷ دوبۍ

.....✸✸✸.....

# منزل

چـــــې مـــــې لار تيـــــارۀ تيـــــارۀ وی
پکښـــــــــې هـــــــم وی ګړنګونـــــــه

شـــــل زمـــــونږ وی پښـــــې لاســـــونه
او پـــــه ســـــترګو هـــــم ړانـــــدۀ وو

دا ســـــې حـــــال کښـــــې بـــــه ملګـــــرو!
مـــــونږه اورســـــو منـــــزل تـــــه

کـــــۀ زمـــــونږه دغـــــه حـــــال وی
دا خـــــو دوه پنځـــــوس کالونـــــه

داســـــې زرکالـــــه کـــــۀ تېـــــر شـــــی
مـــــونږ بـــــه وايـــــو چـــــې روان يـــــو

خپـــــل منـــــزل تـــــه بـــــه رســـــيږو
ولـــــې دا بـــــه زمـــــونږ خيـــــال وی

حقيقـــــت کښـــــې بـــــه ملګـــــرو!
دا بـــــه تـــــش د خـــــوب ليـــــدۀ وی

هغـــــه ملـــــک چـــــې مـــــونږ ګـــــټلے
پـــــه يـــــو نـــــوم د ديـــــن اســـــلام وۀ

مـــــونږ پــــرې داســــې کــــانې اوکــــړې
جماعتونـــــــه مــــو مــــــورچې شـــــوې

او کورونـــــــــه مقبــــــــــرې شـــــــوې
مـــــونږ يـــو بـــــل تـــــه نېغــــې تــــوپې

تـــــــــل د کفـــــــــر دی نيــــــــــولې
نـــــــــۀ پاخـــــــــۀ مســــــــلمانان شـــــــو

نـــــۀ خـــــو پــــوخ زمــــــا ايمـــــان شــــو
داســـــې حـــــال کښــــې بــــــه ملګــــــرو!

ځنګـــــه يـــــو مــــوټے او يــــو ځـــــان شـــو
تـــــــــش د خلـــــــــې پـــــــه ډزو ډوزو

کـــــــۀ پاخــــــــۀ مســــــــلمانان شـــــــو
چــــې هـــــر کـــــس پکښـــــې ليـــــډر دے

د هــــــــر چــــــا خپلــــــه پــــــارټی وي
هـــــر يــــو ځـــــان لــــــه پکښــــې ســـــپر دے

دا بـــــــه ځـــــــومره ځـــــــان ځــــــانی وی
دا ســــــې حـــــــال کښــــــې بــــــه ملګــــــرو!
مـــــــــونږه اورســـــــــو منـــــــزل تـــــــــه

.....✸✸✸.....

## مولانا استاذُنا عبدالمنان عبېد دویم ماذون صېب د لاچی

# یادګیرنه:-

د سینی خټکو روحانی، علمی شخصیت **مولانا استاذُنا عبدالمنان عبید** د کال ۱۹۷۷ د جون د میاشتې په دیارلسمې نېټې د نری بس په حادثه کښې په حق اورسېدۀ. په صابر اباد ضلع کرک کښې د خپل استاد د جنازې نه په واپسی کښې ورته دغه حادثه پېښه شوه.

د خټکو د سر سیورے، د خټکو د زړۀ سر وۀ
دحالاتو په تیارو کښې رونېدلے سپین سحر وۀ
تربنه جمع چارچاپېره به هر وخت وۀ تږی زړونه
ناقلاره زړو دپاره د سکون حوض کوثر وۀ

خټک هسې هم ببرخوار وو، اوس لا نور هم خوار وزار شو
دهستی لوړې غوندې نه حقیقت کښې راګوزار شو
چې سالار راځنې لاړو، د مرګی په خوب ودۀ شو
پښه نیولی کاروانونه سمه لاره کښې ایسار شو
د رسمونو، رواجونو بتخانې یې نړولې
په مړو زړونو کښې یې شمعې د توحید به بلولې
کۀ هرڅو په چاپیرچل کښې هره خوا تیارۀ تیارۀ وه
دا تیرې د ګمراهئیو په ایمان یې رونولې

دانسان د احساس سترګې ړندې شوې وې ملګرو!
ورور د ورور په مری ناست وۀ، دبل غوښې یې خوړلې
انسانانو کښې د مینې وروروڵی جذبات ساړۀ وو
مړې سکروټې وې، ایرې وې چې بس دوئ به پوکولې

خټــک اوس لاســونه مــږی، ســر تتــدی وهــی پــه زوره
خدایــه! نــهٔ دے دزغملــو، دغــه غــم څــهٔ داســې غــم دے
خلــق ډېــردی پیداشــوی خــو بیــا هېــر شــی پــس لــهٔ مرګــه
خــو پــه مــرګ د مولــوی صــیب نــن پــه هــر ســړی مــاتم دے

دے چــا نــهٔ وهٔ پیژنــدلے دوئ هــر څــوک وو پیژنــدلی
خــو پــه مــرګ یــې بیــا هــر چــا وو ښــهٔ پــه زوره زور ژړلــی
د فســاد تــورو تیــارو کښــې د توحیــد بلــه ډیــوه وه
د اعجــاز غونــدې بــې لارو تــه یــې ســمه لار ښــودلی

.....✸✸✸.....

# تصور او خوب

لکه د ژوند تودو سرو نه یو ستومانه زړګے
دچا خیالونو کښې ځان ورک کړی ستومانی اوباسی
یایو مئین زړۀ چې مایوسه شی، دچار اتلو نه
نور وس یې نۀ وی خودخلې نه اسوېلی اوباسی

یایو خولې خولې مزدور چې په خپل کټ او پوزی
خپل مات وجود ودۀ کوی، بې ارامی اوباسی
یا یو د هاړ تندې وهلے چې په جام پرېوزی
په غټه غټ اوښکی اوبۀ، تاؤ لۀ زړګی اوباسی
داسې زۀ هم چې کله کله ناقرار شمه ډېر
راځی کۀ نۀ راځی څۀ خوب خو ځان په زور ودۀ
کړم
کله په مخه مې چې خپل سوی فکرونه واخلی
ځان له یوښکلی شان رنګینه دنیاجوړه زۀ کړم

چې تصور دې کله کله را په زړۀ شی ګلې!
وایم چې والوتے او تاته په هوا دراغلے
روغ لېونے شم، نۀ په ځان نۀ په جهان ووم ګلې!
هر څه چې کېږی خو یو ځلې خامخا دراغلے

لکــه شــاعر بانــدې الهــام چــې د شــعرونو اوشــی
قلــم راواخلــی او کاغــذ بانــدې غــزل اولیکــی
پــه تصــور کښــې پــه وطــن د ښــاپیرو اوبلوســی
هلتــه د حســن ښــاپیرۍ ســره چېــړل اولیکــی

او کلـه خیـال کښـې چرتـه لاړ شـی دجانـان غېږې تـه
هـر يـو انـدام تـه يـې حېـران شـانته ليـدل اوليکـی
دا مصـور چـې يـو رنګين غونـدې شـاهکارجوړوی
ورســره ســم د خپـل مئـين زړۀ درزېـدل اوليکـی

دغـه شـاعرچې پـه لفظونـو کښـې تصـوير جـوړوی
ځان ته يو ښـکلے شـان رنګينه ښاپيرۍ جوړه کړی
دغه شـاعر چې د خپل خيـال پـه رنګينو کښې ورک شـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــی
پـه تصـور کښـې څـومره ښـکلې دنيـاګۍ جوړه کړی

وايـم تـر څـو بـه مـې پـه زړۀ بانـدې ورېـږې ګلـې!
آخــر شــاعر يــم قلــم پورتــه کــړم غــزل اولــيکم
پـه تصـور کښـې دې سـرې شـونډې، سـپين رخسـار راولـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــم
زړۀ غلــوم، ورتــه شــعرونه د چــل ول اولــيکم

څکــه زۀ چــې ارســطو د مملکــت نــه ګلــې!
د تصــور پــه دې ګنــاه ويســتلے شــوے يمــه
اوس هــم هغــه يــم، د خيــالونو د دنيــا اپلاطــون
پـردو خـو پرېـږده، خپلـو هـم ډېـر ډېـر رټلـے يمـه

.....✸✸✸.....

# لاچې کلي ته د يو وزير په راتلو

چرتـــه خبـــره چـــې د خپټـــې مړولـــو اوشـــی
د ســترګو رپ کښـې ورتــه هلتــه خپټـه ور اورســی
يـــا آوازه د يـــو وزيـــر نـــيم د راتلـلـــو اوشـــی
ورتــه ســتر خپټــی وړی تــړی دومــره زر اورســی

چرتــه وزيرچــې لارخطــاکړی زمونږخوالــه راشــی
نوورتــه مخکښــې خودعرضــه ځومشــران اودروی
شغ شـی وزيرچـې ورنـه تېـر شـی، خـړې خلـې پـاتې شـی
دوئ وازه خلـــۀ لکـــه ســـرکوزی ګيـــدړان اودروی

چرتــه وزيــر تــه کــۀ يــو کلــی کښــې ټيکالــه اوشــی
ورتــه ســترخپټی او پلــن ســری ځــو مشــران راشــی
امســا پــه لاس، نېغــه شــمله دکلــی خــان او ملــک
د مـــودو اوړی ورتـــه داســـې غريبـــان راشـــی

يـــا کلـــه وخـــت چـــې د ووټونـــو آخســـتلو راشـــی
مـــونږ غريبـــانو تـــه هـــر خوانـــه ليـــډران رادرومـــی
مطلــب يــې خپــل وی، دروازې ولــې زمــونږ مــاتوی
غـــرض راخســـتی مونږتـــه داســـې ډېرکســـان رادرومـــی

داســې مشــران بــه وائــی، مــونږ تــه وايــه ګټــه اوکــړی
چــاچې مــدام دخپــل اولــس پــه ســر روپــۍ اخســتې
دا هـــم هغـــه دی، د انګرېـــز خوشـــامدګرو ځـــامن
چـــاچې انعـــام کښـــې د انګرېزنـــه نـــوابۍ اخســـتې

اے د مشـــرانو نـــه محرومـــه ليونـــو خټکـــو!
راځــئ چــې مشـر ځــان لــه اوګـورو، لښــکرجوړکړو
دوخـــت ځانګوکښـــې ودهٔ شـــوو اے پرتـــو خټکــو!
پــاڅئ راويښ شــئ چــې د شــپې ځنــې ســحر جــوړ کــړو
.....✸✸✸.....

# د قربانۍ غوايه

يـــــو ســــــاتلے شــــــان غوايـــــــه وه
داســـــــې بـــــل کلــــــی کښــــــې نـــــه وه

هــــــر چـــــا غـــــوږ نــــــه وه نيــــولے
ښـــــکر چـــې يـــې نـــه وه څکـــه ښـــه وه

ســـــــوداګرو کلـــــــــه يــــــو خـــــــوا
کلـــــــه بــــــل خــــــوا ګرزولــــــــو

نـــــه يـــې پـــــرش وه چــــا ليــــدلے
نـــــه يـــــې څـــــوک راپرزولــــــو

قصــــــــــــــابانو ددې کلـــــــــــــــی
قربـــــــــانۍ تـــــــــه وو ســــــــاتلے

ددې ګــــــډو بـــــزو وطـــــن کښـــــې
بــــــــې قيمتــــــــه وه خـــــــــتلے

د آختـــــر نـــــه مخکښـــــې دغـــــو
ظالمــــــــانو نــــــن قربـــــان کـــــړو

ددې ګــــــډو بـــــزو وطـــــن کښـــــې
ژونـــد يـــې هـــر څـــاروی تـــه ګـــران کـــړو

.....✸✸✸.....

# اختر مو مبارک شه

فلسطين کښې چې سرې وينې دی بهيږی
سرۀ اورونه په عراق باندې وريږی

افغانان سره په خپله کښې ستړی
په کشمير کښې لړ په ډېرو راسوريږی

چيچنيا او په بوسنيا کښې چې څۀ کيږی
مسلمان دے په هر ځائے کښې چې قتليږی

داسې حال کښې چې راغلے دا آختر دے
خلۀ زما مبارکۍ ته نۀ جوړيږی

خو مجبور يو چې زمونږه خوشحالی ده
ځکه يو بل سره خاندو، خوشحاليږو

خو بيا هم دومره بې خونده خلق نۀ يو
چې د ورور په قتليدو به نۀ دړديږو

ځکه وايو چې آختر مو مبارک شه

.....✸✸✸.....

# يو تاثر

لکه يو تږے مسافر چې د اوبو په طمع
دچا په در لکه سوالی ستړے ستومان اودری
تش دجامونو په کړنګا يې خله اوبهٔ اوبهٔ شی
دا د يو ګوټ په طمع هسې حق حېران اودری

داسې هم ماته يې کول د سترګو تش ستونه
کله پيرزو يې وو په ما د مينې دا خوندونه

يا يو يتيم چې وړے تږے د چا کور له راشی
ورنه ډوډئ غواړی د خېټې لېونی په خاطر
دکور خاوند يې په ديکو ديکو لهٔ کوره شړی
دےاورته پښوکښې بس لوږېږی دډوډئ په خاطر

داسې ماهم ورنه دمينې خېر غوښتو ملګرو!
زړهٔ مې بې وسه ورته پښوکښې لوږېدو ملګرو

نهٔ يې په ما د خپلې مينې پيرزوئينه اوکړه
د مينې تږے هر ارمان مې په ارمان پاتې شو
نهٔ مې تږې سترګې مړيدې اؤ نهٔ مې زړهٔ صبرېدهٔ
بس په ليدو ليدو کښې زړهٔ مې حق حېران پاتې شو

.....✸✸✸.....

# ننګیالے خوشحال

د اورنــــګ د عظمتونــــو غـــرور مـــات شـــو
چـــې راپورتـــه یـــو پښـــتون لـــۀ اکـــوړی شـــو
د افغــــان پــــه ننــــګ یــــې اوتړلــــه تــــوره
پـــه اورنـــګ بانـــدې یـــو تنـــدر د اســـمانـــی شـــو

یــــــوه چغــــــه د غیـــــرت او حُریـــــت وه
پښـــتونخوا یـــې هـــر اورنـــګ وتـــه تنـــور کـــړه
غـــر او ســـمه کښـــې خـــوره شـــوه دغـــه چغـــه
کـــۀ مغـــل هـــر څـــو بنـــدی پـــه رتنبـــور کـــړه

د خېبـــر لـــۀ ســـره داســـې غـــبز یـــې اوکـــړو
یـــۀ پښـــتونه! کـــۀ ویښ نـــۀ شـــوې نـــو ورکېـــږې
کـــۀ پیـــدا دې پـــه خپـــل ځـــان کښـــې اتفـــاق کـــړو
هـــیڅ مغـــل بـــه دې زیـــر نـــه کـــړی کـــۀ پـــوهېږې

پـــه یـــو لاس کښـــې یـــې قلـــم پـــه بـــل کښـــې تـــوره
پښـــتونخوا ئـــې چـــې غیـــرت تـــه لمســـوله
ســـپین ســـحر د ازادۍ تـــه وۀ لېوالـــه
خپلـــواکی د خپلـــې خـــاورې یـــې غوښـــتله

دا یـــې اووې یـــا بـــه زۀ یـــا بـــه مغـــل وی
د افغـــان پـــه ننـــګ مـــې تـــوره وتړلـــه
ننګیـــالے د زمـــانـې خوشـــحال خټـــک یـــم
د مغـــل د عظمـــت مـــور بـــه کـړمـــه بـــوره

خـــو بـــې ننګـــو پښـــتنو کښـــې هـــیڅ چـــرت نـــۀ وۀ
د وختونـــو پـــه زانګـــو کښـــې تـــول اوده وو

زړۀ چــاودلے د مرګـــی پـــه خـــوب وده شـــو
پښـــتنو کښـــې هغـــه ســـرۀ بڅـــری نـــۀ وو

پښــــتونخوا ئــــې چــــې پــــه تــــوره نازېدلــــه
هغــــه تــــوره د پښــــتون ده زنــــګ وهلــــې
دخوشــحال د عظمــت نــاوې هــم خفــه ده
پښــتنو چــې د وختونــو بنــګ دي ځښــلی

.....✸✸✸.....

# لور

کـــهٔ د قـــام او د ملـــت لـــهٔ پـــاره غـــواړې
هـــر ارمـــان دې دځـــامنو خـــدائے پـــوره کـــه
دښـــمنی دپـــاره تـــهٔ کـــهٔ د ورور غـــواړې
اعجـــاز وائـــی چـــې همـــېش د لـــور دعـــا کـــه

زمـــا ســـتا چـــې چرتـــه لـــور اوشـــی، خفـــه يـــو
خدائے کـه ځـوے راکـړی، جامو کښـې نـهٔ ځـائيږو
مـــونږ آختـــه آخـــر پـــه څـــه پـــه واويـــلا يـــو
مـــونږ د خـــدائے پـــه دو کـــارونو نـــه پـــوهيږو

ولـــې نـــهٔ ګـــورې چـــې دا هـــم ســـتا ځيګـــر وی
پـــه دې څـــهٔ چـــې دا وادهٔ شـــی او د بـــل شـــی
چـې رنځـور شـې ناسـته سـتا د کـټ پـه سـر وی
ســـتا نيـــازبين ځـــوے د وادهٔ نـــه پـــس بـــدل شـــی

دا دې هېـــر شـــو، چـــې پيـــدا تـــهٔ لا د چـــا يـــې
دا کـــهٔ نـــهٔ وے تـــهٔ بـــه څنګـــه زيږېـــدلې
تـــهٔ راغلـــے پـــه دې لار پـــه دې دنيـــا يـــې
پـــه دې راز تـــهٔ ولـــې بيـــا نـــهٔ پوهېـــدلې

دغـــه ســـتا لـــور کـــه د بـــل د کـــور ښـــکلا شـــی
نـــو هـــم ســـتا غونـــدې زلمـــی بـــه راپيـــدا شـــی
تـــهٔ د لـــور پـــه زيږېـــدلو خفـــه مـــهٔ شـــې
هغـــه کيـــږی چـــې څـــهٔ خوښـــه د الله شـــی

.....✸✸✸.....

# غزل څۀ ته وائی؟

زۀ دا منم چې غزل څۀ وی؟ غزل څه ته وائی
کۀ دا د سرو شونډو خندا ته د ښکلا ته وائی
نو زۀ غزل د چا ښکلا پورې محدود نۀ ساتم
زما غزل د خوشحالئ ښکلی صبا ته وائی

غزل یو صنف نازک سره خبرې نه دی
غزل د وخت د تقاضو آئینه دار جوړ شوے
غرل د لوړ تخیلاتو وسعتونه لری
غزل دهردورد تاریخ ښکلے شاهکار جوړ شوے

غزل د نرمو تورو زلفو سره لوبې نۀ دی
غزل انسان ته سمه لاره د ژوندون ښودل دی
غزل یو مینه او د مینې خرمستی هم نۀ دی
غزل د مینې وروولئ او د تړون ښودل دی

وایم غزل د خوشحالئ د سباوون زېرے دے
وایم غزل د ظلم شپې د زړۀ چاودون زېرے دے
وایم غزل په ظالمانو د عذاب چغه شی
وایم غزل مظلوم انسان ته د ژوندون چغه شی

لاچی ۱۹۷۴

.....✸✸✸.....

# شهناز

(د ګهمکول شریف (کوهاټ) په غرونو کښې یوه معصومه جینۍ چې یو ظالم د مینې په جرم قتل کړه، د هغې جرم دا وۀ چې هغه په دغه ظالم مینه شوې وه. دا د کال ۱۹۷۶ واقعه ده )

مینــه کــول خــو زۀ مــنم ملګــرو! بــد خــو نــۀ دی
خــو دا وړ ســترګې زمانــه پــه مینــه څــۀ پــوهېږی
دلتــه خــو مینــه حقیقــت کښــې د هــوس نامــه ده
دلتــه د مینــې پــه ګنــاه هــره شــهناز قتلېــږی

آ میمــونۍ خــو لا غــوټۍوه، غوړېــدلې نــۀ وه
د زمــانې د شــېرعالم د لاســـه اورېژېــده
لا پــرې بادونــه د ســپرلی هــم لګېــدلی نــۀ وو
د زمــانې ســپېرۀ خــزان لمبــو کښــې اوســوزېده
آدفطــرت دښــکلی حســن زړۀ رابښــکونکے شــاهکار
چــې یــې ښائیســت تــه پسخېدل بــه دبهــار ګلونــه
داســې شــاهکارچې ړنګېــدۀ اؤ ماتېــدۀ ملګــرو!
ولــې مــات نــۀ شــول د اسـلم غونـدې ظـالم لاسـونه

د پېغلتــوب پــه بــام ختلــې آ نیازبینــه جینـــۍ
څــومره ناترســه پــه چـړو د یــو یزیــد قتــل شــوه
د خپلــې مینــې تقــدس بانــدې مئینــه جینـــۍ
دخپلــې مینــې پــه نــاموس لکــه شــهید قتــل شــوه

دلتــه خــو مینــه یــو ګنــاه ده نــور هــر څــۀ روان دی

ځکــه شــهناز پــه دې ګنــاه بانــدې قتلېــږی مــدام
چــې دا دسـتور او دا سـماج او دا نظـام وی تـر څـو
مینــه بــه داســې بــدنامیږی، رســوا کېــږی ترڅــو

راځـئ پـه مـرګ يـې چـې ملګـرو پـه جارجـار وژاړو
څـــومره ناترســـه نـــن د مینـــې میمـــونی قتلېـــږی
راځــئ ســماج تــه پــه دې ظلــم احتجــاج چــې اوکـړو
ګنـــې ظلمونـــه بـــه مــدام داســې پــه مــونږه کېــږي

.....✸✸✸.....

# ارمان

ستا شباب زما جنون وے
تهٔ لیلا او زهٔ مجنون وے

تهٔ زما وے او زهٔ ستا وے
نهٔ خفګان نهٔ زړهٔ بدون وے

ته د مینې شېرینۍ وے
زهٔ فرهاد غوندې پښتون وے

ما په لپو لپو څښلے
لهٔ هر غمه په امان وے

خبر ده نور کهٔ هیڅ هم نهٔ وے
خو یو زه او تهٔ جانان وے

تا د مینې ساز چېړلے
زما سر ستا په زنګون وے

چرته لرې په صحرا کښې
دواړو یو ځاے کښې ژوندون وے

چرته لرې یو جهان وے
بس د مئینو ښهٔ دوران وے

سر مې ستا په زنګون پروت وے
پوره دا زما ارمان وے

.....✸✸✸.....

# عشق

عشــق د حــالاتو د تلخــۍ نــه زیږېــدلي څړیکــه
عشـق دپـۍ مخـو بـې رخـۍ نـه بوږنېـدلي څړیکـه
عشـق د زخمونـو د سـرخۍ نـه رالوېـدلي څړیکـه
عشـق دسـرې وینـې دګرمـۍ نـه څڅېـدلي څړیکـه
عشـق داولـس پـه غـم لړلـې د ژونـدون قصـه ده
نــۀ دا یــوازې د لــیلا او د مجنــون قصــه ده

عشــق د کلهــم انســانیت د ورورولــۍ فلســفه
عشــق دانســان د محبــت او ســوکالۍ فلســفه
عشــق د زردار او د نــادار د یــوالۍ فلســفه
عشــق دخوشــحال دننــګ وپــت، پښــتونولۍ فلســفه
عشـق دخوشـحال دتـورې شـرنګ او د غیـرت قصـه ده
نــۀ د لــیلا او د مجنــون د محبــت قصــه ده

عشـق مړېـدل، ژونـدی کېـدل دی د صـبا پـه تکـل
عشـق غوړېـدل او رېژېـدل دی د خنـدا پـه تکـل
عشق غورزېدل اؤ پاڅېدل دی د بیـا بیـا پـه تکـل
عشـق سـوزېدل او بلېـدل دی د رڼـا پـه تکـل
عشـق دحـالاتو د تیـرو د زړۀ چـاودون قصـه ده
نــه ده یــوازې د لــیلا او د مجنــون قصــه ده

عشـق د خپـل ځـان پـه معرفـت دی د الله پېژنـدل
عشـق پـه مجـاز کښـې همېشـه د حقیقـت لټـول

عشــق پــه صــحرا کښــې د لــيلا د ښــکلاګانو ليــدل
عشق پـه خپـل ژونـد کښـې پـه ژونـدون پسـې مـدام ګرځېدل

عشـــق د حـــالاتو د تيـــرو د ســـباوون قصـــه ده
عشــق دظــالم دظلــم شــپې دزړۀ چــاودون قصــه ده
نـــۀ دا يـــوازې د لـــيلا او د مجنـــون قصـــه ده
عشــق داولــس پــه غــم لړلــې د ژونــدون قصــه ده

.....✸✸✸.....

# لاچۍ چې زما
# پلارګنے کلے دے

خزانــــه د تـــاريخونو، دازمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده
آئينــــه ده د وختونـــو، دازمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده

دبابرنـــه ترخوشـــحاله، پـــه دې لاردی ډېرراغلـــی
دغـــې زمکـــې دوختونـــو ډېـــر جنګونـــه دی ليـــدلی
ټکانـــه يـــې د فوځونـــو، دا زمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده

افرېـدی، خټـک، غلجـی اوتورخېـل پکښـې ابـاد دی
اکوړخېل، موچيان او داسې بډه خېل پکښې اباد دی
خېلخانــه دۀ د قومونـــو، دا زمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده

د ولـــۍ نـــه درابـــو کـــاڅو پـــورې دغـــه واړه کلـــی
د ســـينی خټکـــو نـــوم بانـــدې يـــادېږی دا ښـــاغلی
آســـتانه يـــې ده خېلونـــو، دا زمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده
دغـــې زمکـــې ډېرنومـــوړی بـــاتوران دی زېږولـــی
دمړانـــې پـــه دنيـــا کښـــې ټـــول جهـــان دی پېژنـــدلی
مېخانــــه د عظمتونـــو، دا زمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده

دخوشحال نه پس ته که هر څو کۀ دلې حالات بدل
شـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــو
دغه خلق نه چا خپل کړۀ، نۀ په خپله دچا خپل شو
نشـــانه ده د ظلمونـــو، دا زمـــونږ کلـــے لاچـــۍ ده

پـــه دې مځکـــې پيداشـــوی لـــوئې لـــوئې عالمـــان دی
هـــم پيداپکښـــې بـــې شـــمېره شـــاعران اواديبـــان دی

درس خانــه ده دعلمونــو، دازمــونږ کلــے لاچــی ده

چــار چــاپېره تــرې پراتــۀ دی مزارونــه د بزرګــانو
چــې يــې زړونــه رونـړول بــه پــه توحيـد د انســانانو
درس خانــه ده دعلمونــو، دازمــونږ کلــے لاچــی ده

د ماللی خلې په خوا کښې دغه خړ پړ زمونږ کلے
ګران دے دومره په ما ګران دے لکه وی دلیلا کلے
درخانـــه ده د لعلونـــو دا زمـــونږ کلـــے لاچـــی ده

.....✸✸✸.....

# دنیا

چـــــې نــــــهٔ ســـــتا ده نــــــهٔ زمــــــا ده
دا دنیـــــــــــا وایـــــــــــه د چـــــــــــا ده

کــــهٔ یـــې غـــواړې چـــې دا ســـتا شـــی
نـــــهٔ خپلیـــــــږی، بــــــې وفــــــا ده

چـــــې نـــــن شــــــته او صـــــبا نشـــــته
د شــــــــګې هســــــــــې ځــــــــــلا ده

د یـــــو ځـــــو ورځـــــو لـــــهٔ پـــــاره
یـــــــــو رنګینـــــــــه مشـــــــــغولا ده

چـــــې ســـــتا دوې ســـــترګې غړیـــــږی
هـــــــم ښائیســـــــــته ده هـــــــم زیبـــــــا ده
تـــــا بــــــه ځــــــان پســــــې راکــــــاږی
چـــې تـــر ځـــو ئـــې ســـتا ســـودا ده

بلاګـــــــــانې تـــــــــرې جـــــــــوړیږی
دا بــــــــلا داســـــــــــې بــــــــلا ده

وایـــــــــه چـــــــــا ده خپلـــــــــه کـــــــــړې
وایـــــــــه چـــــــــا ســـــــــره پخـــــــــلا ده

نــــــو بیــــــا ځلــــــه پســــــې درومــــــې
چـــــې نـــــن شـــــته صـــــبا فنـــــا ده

آ، پـــــه زړونـــــو بادشـــــاهی کـــــړی
د انســـــــان عظمـــــــت هـــــــم دا ده

خېـــــر ښـــــېګړه د ي، د بـــــل هـــــم
د دنيـــــــــــــا دا مـــــــــــــدعا ده

د رحمــــــــن دغــــــــه وينــــــــا ده
دروغ نــــــــــۀ دی دا رښــــــــــتيا ده

.....✸✸✸.....

# هغه څوک وه؟

هغــه څــوک وه؟ چــې د غرونــو شــهزادګۍ بــه يادېدلــه
چــې بــه کوزبــه ســمې لــه راغلــه، تــرې حيــا بــه شــرمېدله

هغه څوک وه؟ ټوله شپه ئې چې ميچن به غرولـه
د مــلا بانــګ ســره ســمه چــې ســحر بــه پاڅېدلــه

پــه سـتر غولی کښــې بــه دا لکــه د زرکــې ګرزېدلــه
دغــه حــوره د جنــت مــې پــه دې مځکــه اوليدلــه

چــې ســپوږمۍ يــې هــم ښائيســت نــه شــرمېدله
دغــه څــوک وه؟ هســکه غــاړه چــې پــه ځمکــه ګرځېدلــه

چې حيــا يــې هــم حيــا تــه لــۀ ډېــر ســوخته پسخېدله
دا چــې پــټ مــخ وه روانــه، څــومره ښــکلې ښــکارېدله

خبــر نــۀ ووم چــې دا راغلــه او پــه کــومې لــورې راغلــه
د هوســۍ غونــدې پــه دَو، دَو لــۀ هيبتــه زغلېدلــه

خــو پــه ســوو لــوو زړونــو لکــه تنــدر غورزېدلــه
زۀ حېــران ورتــه ولاړ وم، داچــې مــخ پــه وړانــدې تللــه

داخو هغــه پېښــتته وه، مــا بــه خــوب کښــې چــې ليدلــه
چـــــې راويښ شـــــو م ، بيــــا مــــې داســــې

.....✸✸✸.....

# جمهوریت

ګرېوانونـــو د یـــو بـــل تـــه مـــو لاســـونه اچـــولی
د جمهـور پـه نامـه ګـوره، پـه کرسـۍ یـو جنګېـدلی
زه د تـــا ځـــې ماتومـــه، تـــا مـــې پښـــې دی رانیـــولې
زۀ لوررورسـره پـه جنـګ یـم، مـونږ یـو بـل دی پرزولـی
ټـول پـه خپلـه کښـې آختـه یـو، دی یـو بـل مـو ړزولـی
پـه دنیاکښـې چرتـه وی بـه، داسـې نورخـوک شـرمېدلی
دا هغـه جمهوریـت دے زه او تـهٔ یـې دعویـدار یـو
دا ددغـې برکـت دے، د یـو بـل ځنـې ویـزار یـو

راته وایـی سپرلـے راغـے، ټول وطن به شی ګلونـه
دا خـزان د غریبـۍ بـه، اوکـړی دلتـه نـه کوچونـه
ورکوو به هر غریب ته، هر مزدور ته خپل حقونه
ټولـو خـوارو د وطـن تـه، ورکـوو بـه پلاوونـه
غریبـانو د وطـن تـه ، خوشـحالی بـه ورکـوو
مونږدخیـال پـه غونـډۍ ناسـت یـو، کـوو دارنګـې سـوچونه
لټـوو پـه خپلـې خـاورې جنتونـه، جنتونـه

زمونږداسـې خـوار قسـمت دے، چـې یـې لا پـه انتظـار یـو
دلتـه دغـه سیاسـت دے، چـې یـو خـوره نـو لا بـه خـوار یـو

.....***.....

# اوس هغه وختونه لاړل

اوس هغه وختونه لاړل
تا به ماته، ما به تاته
دغه زمکه آسمان یو کړل
زۀ په تا به نازېدمه
تۀ په ما به غولېدلې
چې به تا د کوټې سر نه
ماته ښومره اشارې کړې
ما به وې چې درنه ځار شم
تا به وې چې ما درواخله
لرې بل وطن ته بوځه
خو ما داکولے نۀ شو
ما به وې چې شهزادګۍ یې
خو زۀ تش د وچې خان ووم
ګنې ما به چرته لرې
دنګو لوړو غرونو مينځ کښې
د خوږو اوبو په غاړه
یووړوکے شان کورګے به
کانړو خاورو نه جوړ کړے
خو ما داسې کوے نۀ شو
اوس هغه وختونه لاړل
ځکه ژوند اوس هغه نۀ دے
دا دنیا دومره وړه شوه
اوس نړۍ واړه یو کور دے
چې تۀ څۀ وخت کله غواړې
د هوا په ښپو هر وخت

زۀ او تۀ دواړه خبرې
ښۀ په مينه هم کوے شو
کۀ مونږ يو بل ليدل غواړو
په اسانه هم ليدے شو
خو اوس مينه هغه نۀ ده
چې د زړۀ په زور کېدله
اوس چې څۀ هم کول غواړې
داپه مال او په زور کېږی
چرې دا دواړه کۀ نۀ وی
نوم د مينې چې وانخلې
هغه تش د قصو وخت وۀ
ما او تا چې اورېدلې
نۀ ليلا او نۀ مجنون شته
دغه ټول عبث قصې شوې
کۀ په مټو کښې دې زور وی
هر سړے به د ستا ورور وی
اوس هر څۀ بدل بدل دی
نۀ ګودر او نه منګی شته
د ليلا مجنون خبرې
د خيالی دنيا قصې شوې
اوس هغه وختونه لاړل
اوس نړۍ واړه يو کور دے

.....✸✸✸.....

# ګلفت حسين شهيد

پــه لاره دحســين بانــدی چــې تلــې دې ګلفــت
نــو ځکــه خوجنــت تــه رســېدلې دې ګلفــت

دنــورو ســر ســاتنه يــې د ژونــديولوئــے مــرام وۀ
شرخوښوســــره ځکــــه جنګېــــدلې دې ګلفــــت

دقــام او د ملــت دپــاره هرڅــۀ يــې قربــان کــړل
نــو مــرګ د شــهادت تــه خندېــدلې دې ګلفــت

ژونــدون يــی آخرڅــۀ وۀ، جيوقربــان او زارېــدل وو
مطلــب د ژوندانــۀ مــونږ تــه ښــودلې دې ګلفــت

مـنم چـې دا رښـتيا دی ،سـل دی اومـره يـو دی مـۀ مـره
اعجازخټــک هــم دارنګــې ســتائيلې دې ګلفــت

.....✸✸✸.....

○

چې څښــوې شــراب د مینــې پــه نظــر د مســتو ســترګو
پــه دا خــوئ مــې ځکــه خــوښ دے دا دلبر دمســتو ســترګو

زمــا ســترګې پــرې خــوږېږي، زمــا زړهٔ چــې پــرې ډاډه وي
خــدائے آبــاد دې لــري داســې دا ګــودر د مســتو ســترګو

سترګو سترګوکښــې ســت اوکــړی، رانــه اوتښــتی مــخ پــټ کــړي
کــوي مینــه پټــه پټــه پــه هنــر د مســتو ســترګو

څوک یې نـهٔ وینـی رادرومـی، څوک پـرې هېـونـهٔ پـو هېږي
چې وریږي کلـه غشـي، لـه سـنګر د مسـتو سـترګو

نـذرانې ورتـه شـاهانو، چـې د خپلـو زړونـو راوړې
مـا لیـدلې پـه دې سـترګو کروفـر د مسـتو سـترګو

هیڅ یقین مې خدائے زده نـهٔ شي، چې به بچ ترې زما زړهٔ شي
راپســې چــې لګیــا داســې، وي لښــکر د مســتو ســترګو

هرنظـر یـې سـخن سـاز دے خدائے ورکـړے دا اعجـاز دے
دا همـه غـزل شـی، پـه اثـر د مسـتو سـترګو

.....✸✸✸.....

○

( دا غزل دبنون تنقيدي ادبي ټولنې په انعامي مشاعرې کښې د دويم انعام حق دار ګرځولے شوے وۀ . د طاهرکلاچوی غزل ته وړومبے انعام ورکړلے شوے وۀ)

ستا د مينې لېونې چې وو، په دار شو
په مئينو کښې دې اوس خو ايله شمار شو

دا حرم کۀ بتکده وه، نۀ پوهېږم
لېونے زړۀ مې په پښو کښې ورګزار شو

په زاريو به دې هيڅکله خپل نۀ کړم
زما عشق هم د پښتون غوندې خود دار شو

غمژن زړۀ ته مې د سوز سندرې وايه
ايله سپک خو مې په دې د زړګی بار شو

ستا د مستو خمارو سترګو اثر وۀ
مېخانه کښې د جامونو ګړنګهار شو

دا **اعجاز** چې وۀ مدام خلقو رټلے
په دې څۀ کۀ جوړ په مرګ يې وير ناتار شو

.....✸✸✸.....

○

حسن، مینه چې رایوځائے شی جانان شی
د چا سترګې، د چازړهٔ شی، دچا ځان شی

کهٔ زما جانان دې اولیدو په سترګو
تانه هېر به دجنت حورې غلمان شی

چې په مال، دولت ئې څوک اخستے نهٔ شی
کاشکې هر انسان که دغسې انسان شی

خلق وائي چې یې زړهٔ راځني یوړو
خو تازه پرې د اعجاز خټک ایمان شی

.....✸✸✸.....

○

راشـــئ چـــې زۀ درکـــړم لېـــونی مینـــه
بـــل خـــوا ښـــکلیو! ځلـــه لټـــوئ مینـــه

مـــا درتـــه شـــوملې او پیـــاڅې راوړلـــې
غـــواړې کـــۀ لـــۀ مانـــه پرونـــی مینـــه

خلقـــو! لټولـــه ســـرو او ســـپینو کښـــې
هغـــه وه غریـــب کښـــې پخـــوانی مینـــه

مینـــه د غـــرض پـــه سیاســـت شـــوله
جـــوړه شـــوه اوس دا پاکســـتانی مینـــه

چغښـــې چـــې د دوو غرونـــو میـــنځ کښـــې شـــوه
ځـــــومره ده مظلومـــــه افغـــــانی مینـــــه

دوه مئـــین جـــدا چـــې لـــۀ یـــو بلـــه کـــړی
دا بـــــه وي رښـــــتیا امریکنـــــی مینـــــه

مـــا اعجـــاز تـــه ژونـــد ځکـــه رنګـــین ښـــکاری
مـــا ســـره چـــې وی د شـــېرینی مینـــه

.....✸✸✸.....

○

مـونږه پــه ســرهٔ اورکښـــې ژونــدون لــهٔ ډېرناکامــه کــوو
طمــع د ننــګ چــې لــهٔ بــې حســه ودهٔ قامــه کــوو

هــر څــو کــهٔ نــورو بانــدې بــدې لګــی رښــتیا خبــرې
د ژونــد خبــره بــه همــېش د ژونــد لــهٔ بامــه کــوو

دخپـل ښائیسـت پــه بـام ختلـې دومـره مـهٔ نـازېږه
مـونږه عـزت سـتا د ښائیسـت لـهٔ احترامـه کـوو

تــر څــو چــې مینــه پېغلتــوب تــه رســېدلې نــهٔ وی
ددې دفـــاع بـــه تـــر هغـــې لـــه هـــر الزامـــه کـــوو

چرتــه چــې بــد پــه خلقــو تــش د مینــې تکــی لګــی
پــه داســې کلــی کښــې بــه څنګــه مینــه عامــه کــوو

هــیڅ پوهــه نــهٔ شــو چــې پــه تابانــدې مئــین څنګــه شــو
وایـــئ اعجـــاز داســـې کارونـــه مـــونږ بـــې پامـــه کـــوو

.....✸✸✸.....

یادګیرنه ! چاراته وې چې ستا دا غزل بل یوشاعر پخپل نو م خپل کتاب کښې چاپ کړے نو ماوې چې دا خو ما دپاره لوئے اعزاز دے چې زما کلام هم څوك د دې جوګه ګڼي چې پخپل نوم ئې چاپ کړي ---- اعجازخټك

○

هغه چې سترګو کښې خبرې کوی
راته د مینې ډېرې غورې کوی

حېران د کلی مشرانو ته یم
دا چې خبرې کوی سترې کوی

د فلسطین او د کشمیر په زمکه
خبرې تورې کوی، زغرې کوی

چې د اعجاز غوندې لۀ سره تېر شی
هغه خبرې زړَورې کوی

.....✸✸✸.....

○

هغه چې جام د پاسه جام سره هم خلۀ ورکوی
داسې ساقی ته به څوک څرنګې زړه نۀ ورکوی

په دواړه لاسه چې سحر ماښام لوټی مالونه
دومره غریب سړے به بل غریب ته څۀ ورکوی

کله دخدائے په مینه مست، کله دقام په جذبه
سرونه دومره آرزان بیه پښتانۀ ورکوی

هغه ده بیادزمانې منصور په دار خېژوی
ژوند ورنه آخلی خو ژوندون په ژواندانۀ ورکوی

.....✸✸✸.....

○

ملګـــرو زۀ پـــه داســـې ښـــار کښـــې اوســـم
لکـــه د مصـــر پـــه بـــازار کښـــې اوســـم

شـــــهبازګړه د ســــتړو ځـــــاے يـــــادېږی
ځکـــه د يـــار د کـــوڅې لار کښـــې اوســـم

خبـــر دے کـــۀ نـــه راځـــې خـــو هـــا اووايـــه
چـــې دې خـــوش فهمـــه انتظـــار کښـــې اوســـم

هغـــــه د امـــــن او انصـــــاف غوښـــــتنه
لکـــه د تېـــر وخـــت چرتـــه غـــار کښـــې اوســـم

.....✸✸✸.....

○

ژونــدون څــۀ دے دا یــو نــوم د هنګــامو دے
ســـــتړی لار د پرېوتـــــو اؤ پاڅېـــــدو دے

څــوک پــه غــم لړلــی ژونــد ځنــې بېــزار دی
د چــا ژونــد خــو بــس یــو نــوم د رنګینــو دے

چــې د وخــت هــر یــو طوپــان تــه غــاړه وځــی
منــــزل پښــــو کښــــې بیــــاد داســــې لېونــــو دے

تېوســـــانو لـــــه ژونـــــدون لتـــــه ورکـــــړې
د ژونـــدون حـــق خـــو یـــوازې د زمـــرو دے

فیصـــلې زمـــونږ د کلـــی چـــې پـــردی کـــړی
دغـــــه جـــــړ زمـــــونږ دټولـــــو مســـــئلو دے

.....✸✸✸.....

○

پـروت پـه سـجده، زړۀ کښــې خـدائے بـلا خـدايان ګرځـوو
مـونږ آذر خويـه دې کعبــې کښــې هـم بتــان ګرځـوو

خـدائے پـه هـر څـه يـو پـوره کـړی خـو بيـا هـم ډېـر وږی
کچکول پـه غـاړه ځکـه مونږ پـه ټـول جهـان ګرځـوو

د نړيوالـه کلـی خـان ملـک بـه څـوک پوهـه کـړی
پـه خپـل وطـن کښـې جنـازې مـونږه د ځـان ګرځـوو

عـدل انصــاف، د داســې خلقوبــه څـوك څـۀ اومنــي
چــې دروغـژن يـو ځکــه سـر بانـدې قـرآن ګرځـوو

.....✸✸✸.....

○

ســـــتا د خبـــرو د ځـــواب بـــه نـــۀ یـــم
هــر څــۀ بــه یــم خــو ســپین کتــاب بــه نــۀ یــم

خلـــق مـــې لـــولی پـــاڼې پـــاڼې د ژونـــد
پــه مــخ راخــور دې تــور نقــاب بــه نــۀ یــم

چــا نــه چــا، چــا پــورې خپــل ځــان تــړلے
د کتـــاب داســـې انتســـاب بـــه نـــۀ یـــم

د ژونـــد مقصـــد کـــۀ د جنـــت ګټـــل دی
آختـــه پـــه دغســـې عـــذاب بـــه نـــۀ یـــم

.....✸✸✸.....

○

ځنې سرونه مې ليدهٔ ، په نمر خاتهٔ پرېواتهٔ
ځنې سرونه آخر غوخ شو، ورته نهٔ پرېواتهٔ

دخاموشۍ لهٔ شوره ډېرو سر تندے اونيوهٔ
دبېوسۍ لهٔ زوره ډېر په زنګانهٔ پرېواتهٔ

دعوې په چا، آخر د څه ،په کومې خلې اوکړمه
هلته دامن دعوه ګير ساړهٔ واړهٔ پرېواتهٔ

غوره تښا چرته په لرې وطنونو اوشۍ
تندر آخر زمونږ په کور په هرکالهٔ پرېواتهٔ

ځان ته د ځان په مقابل چې کله زهٔ اودرېدم
دزړهٔ کعبې کښې مې بتان خوارهٔ وارهٔ پرېواتهٔ

.....✵✵✵.....

○

ګلـه! چې پـه سـترګو کښـې اغـزے دې کـړم
ښـه ده چې خپل ځـان سره يـو ځـائے دې کړم

تـــا چـــې د ښـــو پـــه غشـــو اوويشـــتم
مـــړ ومـــه جانانـــه! راژونـــدے دې کـــړم

زۀ خـــو ســـتا پـــه ســـترګو جهـــان ګورمـــه
سترګې مې هم تـه شوې چې پـردے دې کړم

خلقـــو د مجنـــون خبـــرې هېـــرې کـــړې
ځـــان پســـې هـــم داســـې لېـــونے دې کـــړم

ســـتا اعجـــاز خټـــک بـــه ولـــې نـــۀ ســـتائی
ستا يـو خـوږ نظـر دے چې زلمـے دې کـړم

.....✸✸✸.....

○

هیڅوک نهٔ ګوری خپل ځان په ائینه کښې
بل ته ښائی بل انسان په ائینه کښې

توري خاورې به د یار په دیدن موړ شی
ځان ته ګورې چې د ځان په ائینه کښې

خلقو خپلې برخې یوړې بختور شو
مونږ یې ګورو د ارمان په ائینه کښې

دا چې تا پورې یادیږی زمونږ کلے
ښکلے ښکاری د دوران په ائینه کښې

.....✸✸✸.....

# ( درې شعرونه )

هر سړے نفرت لۀ يو سړی کوی
هر سړے ددۀ سره يارى کوی

خدايه! د دجال فتنه به څنګه وی
ګوره! چې ړاندۀ مو مشری کوی

خپلو مې چاړۀ په مری ايښې ده
خپل خو داسې نۀ کوی، پردی کوی

.....✸✸✸.....

○

پـــرون چـــې ورور د ورور مرګونـــه اُوکـــړل
مـــونږ پـــرې د پاســـه زيـــات قتلونـــه اوکـــړل

چـــې پـــه لمنـــې د چـــا نمـــونځ کېـــدلو
هغـــو ګنګـــا کښـــې اودســـونه اوکـــړل

غـــل بـــه د غلـــوښطن کښـــې چـــا تـــه وايـــو
هرچـــا يوبـــل پســـې نمنځونـــه اوکـــړل

مـــونږ تـــه څـــۀ پتـــه د دښـــمن نـــۀ لګـــى
مـــونږ دپـــردو پـــه ســـر جنګونـــه اوکـــړل

خـــوب کښـــې چـــې راغـــے نـــو ورغـــاړې وتـــم
مفتوکښـــې مـــونږه ديدنونـــه اوکـــړل

چـــې پـــه دنيـــا کښـــې پـــۀ ښـــۀ نـــوم يـــادېږى
هغـــو هـــم داســـې ښـــۀ کارونـــه اوکـــړل

اعجـــاز خټـــک بـــه آخـــر خـــدائے پوهـــه کـــړى
غـــرۀ کښـــې يـــې چاتـــه آوازونـــه اوکـــړل

۲۷مارچ ۲۰۱۲ ء

.....✸✸✸.....

# هائيکوګانې

مانــه جمــات کښــي چــا څپلــۍ پټــې کــړې
مــاوې چــې دا څـــهٔ د مــوچي دکـــان دے
چــې زړې پرېــږدي او تــرې نــوې يوســې

.....✸✸✸.....

نــن يــو خټــك دغــرهٔ پــه ســر ګډېــدهٔ
مــاوې چــې بيــا بــه چرتــه ډول غږېــږي
ځکــه چــې دا دومــره د تينګــې نــهٔ دي

.....✸✸✸.....

مــونږ هغــه ملــك تــه زنــده بــاد وئيلــي
د ښــي توښــې نــه يــې مــونږ اوويســتلو
لکــه پــردي خيــرات کښــې ســپي ورړَوٌو

.....✸✸✸.....

# هائیکوګانې

دخـــــواري ځـــوی ډالــــر لیـــدلے نـــــۀ وۀ
اوس د ســوکړك پــه ځــائے برګـرې غـواړي
مــونږ بـــه اوس تشـــې هســې خلــې چړپــوُو
.....✷✷✷.....

پــــه انټرنیــــټ یــــاراني څنګــــه کېـــږي
چرتــه  فـیس بـك کښـې چې جینـۍ ښـکاره شـي
بــــلا ځوانــــان ورتــــه لَــــو یٌــــو اووائـــــي
.....✷✷✷.....

د دهمــــــــاکوسره بلــــد دومــــــــــره شـــو
اوس د ټوپـــــك ډز راتــــه داســــې ښـــــکاري
لکـــــــه ماشــــوم چــــې چرتــــه ټیزواچـــوي
.....✷✷✷.....

# هائیکوګانې

خدایــه ! پــه ملــك كښــي خوشــحالي راولــې
ګنــــــــي واړۀ واړۀ خــــــــدایان دی واړه
دڅــان نــه مخكښــې بــه دوزخ تــه لېــږو

.....✸✸✸.....

چــاوي چـې ځنګــه څــوك لیــډر جــوړیږي
مــــاوې دروغ او حرامتــــوب زده كــــړه
خلــق بــه دې خپلــه بیــا بــه ســر ګرځــوي

.....✸✸✸.....

ســـل شـــیطانان او یـــو لیـــډر زمـــونږه
لكـــه چـــې ســـل پـــاپړ او یـــو لـــوړ وي
څكـــه شـــیطان هـــم تربنـــه لـــرې تښـــتي

.....✸✸✸.....

# هائيکوګانې

ښــکلو تــه اووايـــئ چـــې کـــور کښـــې کېنــئ
زمـــــونږ وژلـــــو تـــــه دي نـــــهٔ رادرومـــــي
اوس دغـــــه کـــــار دغـــــه خودکشـــــه کـــــوي

.....✸✸✸.....

نرخونـــــه ورځ پـــــه ورځ پـــــه بـــــره خېـــــژي
چـــې دغـــه حـــال ، دغـــه رفتـــار وي زمـــونږ
بـــره ســـپوږمۍ تـــه بـــه مـــونږ زر اورســـو

.....✸✸✸.....

يوشـــل روتـــۍ مـــې چـــې مېلمـــه تـــه راوړې
وې چـــې يـــوه روتـــۍ تـــرې بيرتـــه يوســـه
وې چـــې انســـان يـــم ، ځناور خـــو نـــه يـــم

.....✸✸✸.....

چرتـــه زړهٔ خـــوږے مشـــر وي بـــه کنـــهٔ ؟
پـــه دې ارمـــان واړه ســـپين ږيـــري شـــولو
لکـــه د کونـــډې لـــــهٔ لېـــورهٔ اووتـــو

.....✸✸✸.....

کــۀ یــو انګرېــز انګرېــزي نــۀ شــی لــیکے
دغـــــه پوښــــتنه لـــر. د ځـــان نـــه اوکـــه
تـــا کـــوم پښتوکښـــې سپاړسـم پـــاس کـــړے

.....✸✸✸.....

هغـــــه جمــــات کښــــې انګرېـــزی وئیلـــــه
وې یـــې چـــې دۀ د خـــدائے ظـــالم تـــه ګـــوره
کفـــر ئـــې ټـــول ګـــوره ! جمـــات تـــه راړو

اعجاز خټک هغه شخصیت دے د چا لۀ برکته چې په ټول خلیج کښې د پښتو ټولنې جوړې شوي دي او په خلیج کښې د پښتو مشاعرو بنسټ هم دغه مشر ایښودلے دے. د اعجاز خټک په کوششونو او ترغیباتو زمونږ پښتو ادبي ټولنه قطر هم جوړه شوې ده
د کومې لۀ سوبه چې په پښتو ادب کښې ډېر زیات کار په دیار غېر کښې شوے دے.د اماراتوپښتو ادبي ټولنه مرکزډُبیٔ واحده ټولنه ده چې په پردي وطن کښې یې مشاعرې منعقد کړې دي او د پاکستان نه یې ورته شاعران او ادیبان راغوښتي دي.تر اوسه د ټولنې د ملګرو لۀ خوا څو درځنه کتابونه او مجلې هم خپرې شوې دي.دا ټول هر څۀ د دغه کس لۀ برکته وو..
فیروزآفریدي
صدر
پاک پښتوادبي ټولنه دوحه قطر